


# کندهار





ولسی جرگی د دکتور عبدالظاهر د حکومت په خط مشی
او د دوی د کابینې د غړو په باب د څو ورځو
بحث او د دو کیلانو د نظریاتو د څرگندولو
څخه وروسته د اسد په ( ٥ ) نیټه د اساسی
قانون د (٨٩) مادی په اساس د (١٨١)
موافقو رایو په مطلق اکثریت د
اعتماد رایه ورکړه

# دنوی صدر اعظم د کابینې غړي



دوکتور عبدالصمد حامد
دصدراعظم مرستیال



ستر جنرال خان محمد
دملي دفاع وزیر



ښاغلی محمد موسی شفیق
دخارجه چارو وزیر



ښاغلی امان الله منصوري
داخله وزیر



پوهندوی محمد انور ارغندیوال
عدلیه وزیر



دوکتور غلام حیدر داور
دمالیې وزیر



ښاغلی حمیدالله عنایت سراج
دپوهنې وزیر



پوهنوال محمد عارف غوثي
دتجارت وزیر



ښاغلی خوازک خان
دفوایدعامې وزیر



ښاغلی محمدابراهیم عباسی
د اطلاعاتو او کلتور وزیر



انجینر نصرت الله ملکیار
د مخابراتو وزیر



پوهاند محمد ابراهیم
مجید سراج د روغتیا وزیر



انجینر لعلی
د کانو او صنایعو وزیر



ښاغلی عبدالحکیم
د کرهنې او اوبولګولو وزیر



دوکتور عبدالواحد سرابی
د پلان وزیر



میرمن شفیقه ضیائی
مشاوره وزیره



دوکتور عبدالوکیل
مشاور وزیر



پوهندوی عبدالستار سیرت
مشاور وزیر

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي موسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال پنځمه ګڼه
پرله پسې ګڼه ۱۳۱

کالنۍ بیه

په کندهار کې [۲۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کې [۳۲]«

په باندنیو هیوادو کې یو ډالر

د زمری میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

---

## ددې ګڼې مضامین

# د مترقي ژوند او حقيقي نيکمرغۍ
## پر لور هڅه د هر پوه او عقلمند
### انسان خاصه ده

دا نړۍ د اسباب او وسايلو ځای دی، دلته انسان هر شی او هر مطلب د غوښتلو، په دغه لار کی د مجادلی کولو او وسايلو د په کار اچولو د لاری لاس ته راوستلی شی او هر څوك کولای شی چه د سختو مشکلاتو او لويو خنډونو سره سره په خپلو ستر و ملی هدفونو او اجتماعی مقصدونو کی بريالیتوب وګټی خو په دی شرط چه د خپل مطلب په لار کی پوهه، سنجش، او غوره تدبير ورسره ملګری کړی د کوشش

او پر له پسی فعاليت څخه کار واخلی او په دغه روحيه مخ په وړاندی ولاړ شی .

که څه هم د پوه او عقلمند انسان سره ارومرو د ښه او نيك مرغه ژوند هيله شته خو د عصر غوښتنی ، شرايط او د زمانی ايجابات، انسانی

اړتياوی، پوهنه ، روزنه او اوسنی ساينس او تخنيکی کمالات دانسان پر افکارو او اعمالو زيات اغيزه کوی ، همغه دی ته رابولی چی په خپل فردی او اجتماعی ژوند کښی د نورو په ګټه اصلاحی تغيرراولی دژوند پخوانی وسايل په نويو او عصری وسايلو بدل کړی او د نورو پرمخ تللو انسانانو په څير د تحول او تکامل پرخوا رهی شی .

څکه چی د نړی د انسانان د بيلو بيلو عواملو له کبله پر بيلو بيلو هيوادونو او ملتونو ويشل شوی او د مختلف طرز تفکر او طرز عمل له کبله ئی ژوند تر خاصو اجتماعی ، اقتصادی او سياسی شرايطو لاندی راغلی دی نو نتيجه دا شوه چی اوس په خپل منځ کښی څينی ګډ خويونه او همدا رنګه ميزه او خاص صفتونه لری او دغـــه مشترك خاصيتونـــه د نړی ټولو انسانانو ته که څه هم هر ډول اختلافونه سره ولری بيا هم د منلو وړدی په

داسی حال کښی چی د يوه هيواد مميزه خويونه د هابل هيواد نه بيخی توپير لری نو څکه ئی منلو ته هم د بل هيواد خلك غاړه نه ږدی .

د مثال په ډول و يلای شو چی دين ، ملی اخلاق، کلتور، مليت، ادب او تاريخ د يوه هيواد د انسانانو ګډ معنوی ميراث او مميزه خويونو له جملی څخه دی او همدغه ستر لرغونی خويونه د مدنيت د عناصرو څخه شميرل کيږی او د هر هيواد ملی او مدنی قوانين هم د همدغه

لرغونی معنوی ميراث څخه سرچينه اخلی او د همغه په چوکاټ کښی د عصريت او عصری شرايطو سره سم د ژوند د سمون او ارتقا لپاره د ګډو بشری خاصيتونو لکه د ساينس، تخنيك او عملی پرمختګونو څخه ګټه اخستل او يا په دغه لار کښی تلاښ کول هم منی او يو ملت د بل

ملت د پوهانو او عالمانو د اختراعاتو او علمی اکتشافاتو څخه کار اخلی او د همغو په رڼا کښی خپل ملی او ولسی ژوند پرمخ بيائی .

د اڅکه چی زموږ اجتماعی دين اسلام، ملی کلتور، اخلاق ا اهميت زموږ د مترقی ژوند ، نيك مرغی، تحول او تکامل پر خوا دی اوموږ د حقيقت رويه کولای شو چی يوائحی او يوائحی

د خپل دغه ګډ ملی ميراث او معنوی پانګی په سيوری کښی پرمخ ولاړ شو او د خپل هيواد سالم انکشاف او د خپلو خلکو ذهنی تحول ته مستقيمه لاره خلاصه کړو .

لکه څرنګه چی موږ د مخه وويل اوس په نړی کښی انسانان بيل بيل افکار، جلا عقايد، ځان ته خاص کلتور ،جغرافيائی موقعيت او ملی اخلاق لری او د ژوند کولو طرز ئی د يو بل

(پاته د پښتی په ۳۴ مخ کی )

د الحاج حبیب الله «سرپاس» ژباړه: (۳)

# شعر څه شی دی

# او څه صفات لری ؟

### شعر داروپائیانو په نظر

دوی شعر پر درو ډولو ویشلی دی:

۱- رزمی Epigue

۲- غنائی Lyrigue

۳- ډراماتیك ·

### غنایی :

هغه اشعار دی چی یونانیانو به دلیرمی دمعروف ساز سره ویل اودا اشعار دانسانی روحی احساساتو نمایندا، دپټو آلامو او دردونو مجسم کونکی اود بشر دخوشالیو اوغمونو څرگندونکی واسطه وه لکه د بانډو اشعار اود ژانژاك روسو هوراس اثر او دلامارتین مرثیی ·

### رزمی :

هغه اشعار دی چی دقهرمانانو د کارنامو قصې بیانوی اود جنگی خلکو داخلاقو، میړانو اونورو صفاتو شرحه پکښی کیږی او کله کله داقهرمانانو د فوق العاده انسانانو په شان ستاینی لکه د (ایلیاډ) اود (اودیسه) یونانی شاعرانو رزمی اشعار اود (ایندوبرژل) رزمی قصی اود (ډانته) ایطالیائی شاعر د الهی کمیډی اود فرانسوی شاعر (رولاند) حماسه ئی بیتونه اود (میلیټون) ورك شوی بهشت ·

### ډراماتیك:

بدی کښی ټول هغه اشعار شامل دی چی د نمایش په صحنه کښی ویل کیږی کله د کومیډی په شکل او کله د تراژیدی په توګه چی ژړونکی او خنده آوره دی او یا کله (میلوډرام) او بیا کله د (هجائی) پنامه وی.

نور انواع هم لری چی هغه ته وصفی، آموزشی او کلیوالی اشعار وایی او لنډی لنډی منظومی قصی هم پکښی شاملی دی ·

### دشعر سره لازم علوم:

۱- عروض·

۲- بلاغت ·

۳- د معانی علم ·

٤- دبیان علم ·

٥- د بدیع علم ·

٦- قافیه ·

۷- چکامه·

۸- دمحاضراتو علم ·

۹- د انساب علم·

۱۰- وضاحت·

۱۱- د منطق علم ·

### عروض:

د عروضو علم د اشعارو د وزن بحث کوی او عروض ئې هم ددغه جهته بولی چی اشعار پر عرضیږی ·

د عروضو دعلماؤ څخه چی عروض ئې تالیف کړیدی ابوالحسن علی بهرامی سرخسی ابوسعید احمد بن محمد منشوری سمرقندی او مشهور کتاب ئې المعجم فی اشعار العجم او شمس قیس رازی کتاب ئې حدایق السحر فی دقایق الشعر او طوط دی·

### بلاغت:

هر رسا کلام ته بلیغ ، او علم ته ئی بلاغت ویل کیږی او علوموته ئی دمعانی علم د بیان علم د بدیع علم اود عروضو د قافیی علم ویل کیږی ·

### دمعانی علم:

هغه کلام ته ویل کیږی چی د حال او مقام په اقتضاء ویل کیږی اوموضوعات ئی عبارت له:

ایجاز، اطناب، مساوات، اسناد، قصر، انشاء او حل وفصل څخه دي.

## د بیان علم:

په لغت کښې د کشف او توزیع په معنی په اصطلاح کښې د هغه قواعدو له مجموعې څخه عبارت دی چې د یو شی معنی په ډیرو لارو، طریقو، قسم قسم الفاظو شرح او بیان شي او موضوعات ئې مجاز، استعاره، کنایه او دغه ډول نور دي.

## بدیع:

کلام او خبرو ته زینت او آرایش ورکول دي، چې د دغه علم په واسطه د یوه بلیغ کلام محسنات پیژندل کیږي، او صنایع ئې عبارت له لفظي او معنوي صنایعو څخه چې د نظم او نثر ترمنځ مشترک دي.

لفظي صنایع لکه: تسجیع، ترجیع، لف، نشر، تجنیس، تضمین، رد العجز علی صدر، رد الصدر علی العجز، موشح، ملون.

معنوي صنایع لکه: تشبیه، استعاره، کنایه، مجاز، ایهام، مطابقه مراعات نظیر، براعت استهلال، حسن طلب، اغراق، تمثیل، حسن مطلع حسن مقطع، لغز، معما.

## قافیه:

د شعر په اصطلاح کښې د بیاتو آخری حرف ته ویل کیږي چې اصلي او آخری حرف د ټولو یو حرف وي.

## چکامه یا چامه:

د پهلوانانو د شرح حال، د جنګ د ډګر اوصاف، د عشقي او رزمي داستانو او قصو څخه عبارت دی.

## د محاضراتو علم:

په لغت کښې د محاورې او د حاضر جوابۍ په معنی او په اصطلاح کښې هغو اشعارو ته ویل کیږي چې شاعر ئې د یو ځای د مقام او منزلت په مناسبت وایي.

## د انسابو علم:

یو داسې علم دی چې د هغه په واسطه د خپلوانو او قبایلو ترمنځ روابط پیژندل کیږي مګر په دې ډول سره چې د هرې رشتې او د نژاد اصول او فروع یو د بله انفکاک ومومي.

## فصاحت:

که څوک یو کلام روښانه ادا کړي چې مستمع د هغو خبرو د ټولو شیانو صحیح درک وکړای شي او په دې پوهیږي د غه کلام ته فصیح کلام او علم ته ئې د فصاحت علم ویل کیږي.

## د منطق علم:

دا داسې یو علم دی چې د دې علم په کارولو سره د خطا او څو ئیدلو څخه اندیښنه د اګرځي عربو د منطقو په تعریف کښې ویلي دي (المنطق الة قانونیة تعصم بها عن الخطاء في الفكر) د دې علم لومړنی واضع ارسطو ؤ دا علم ئې د عقل ترازو او د فلسفي مقیاس باله.

منطق د ډیرو مختلفو رشتو در لودنکی دی لکه نظري یا غریزي منطق، صناعي یا استدلالي منطق، عملي منطق، متدولوژي او رياضي منطق چې د رياضي قواعدو څخه بحث کوي.

داوه د شعر پر موضوعاتو باندې یو څه معلومات چې پښتو ترجمه ئې ستاسې د معلوماتو د پاره یوړته و ایکل سوه سره د ټولو معلوماتو چې شاعر لره ښائي چې د شعر ویلو په وخت کښې پر دغو باندې یو څه علمیت واري.

شعر باید د موسیقي په پردو باندې چې اوه پردې دي تطبیق سي او هغه اوه پردې دا دي:

(سا، رې، ګه، مه، پا، ده نی) او چپه ئې (سا، نی، ده، په مه، ګه، رې).

که هر څوک سره د یو شعر په جوړولو کښې ډیر زحمت وخیژي او تر یو حده پوري پر قواعدو او اصولو باندې بنا وي هغه وخت موږ هغه شعر ته خوږ شعر او

(نور په ۸ مخ کښې)

# خواص او عوام

د مولینا «حبیبي» په قلم:

مونږ تصمیم لرو چه وروسته له دې تر دغه پورتني عنوان لاندې د خواصو او عوامو، عادات او رسوم څه ډول چه دوی یې معتاد دي، په مختلفو موضوع ګانو کې، چه د خوند او تلذذ څخه خالي نه وي د کندهار

په مجله کې چاپ کړو.

دا موضوعات، البته ډیر متنوع متفنن، او ډیر نوی دي او ممکن دیوه لطافت سره دې زمونږ عرف،

او عادت، زمونږ کلچر، زمونږ کلتور، او زمونږ کرکټر، زمونږ اعمال، په علمي او ثقافتي او ډول ډول پردو کې دلته ځای غلو لوستونکو ته وړاندې کیږي:

په دې کښې زمونږ غرض دا دی چه دا ذهن نشین کو او په تیره بیا په یاد ئې راوړو، چه زمونږ ددې شپو او ورځو په جریان کې متحول بو، او که بې تحوله، زمونږ حرکت

او نهضت چټک دی که بطي مونږ اکتشاف کړی دی، مونږ وړاندې تللي بو او که یه؟

اخیر ازمونږ حیاتي او اجتماعي سیر مخ پر صحت او ښه والي دی او که څنګه؟

مونږ د سیاسي شعور په موقف کښې ګام ایښی دی. او که الا نه

کما کان په ځای نه بو؟

مونږ د زماني، د پیښو سره مجادل بو، او په ژوندې پیکر سره نیرومند او مجهز بو، او که دا

چه به په مونږ کښې لا نه وه پاڅیدلي؟

زمونږ اجتماعي ژوند، که هرڅونه په ډیرو پردو کښې پټ دی خو د خواصو او عوامو دغه دوې جامعې پردې د ټولو آئینه داری او تبیین کوی

اوس په اثر ددې یادونې دپاره د خواصو او عوامو تر عنوان لاندې مختلف موضوعات په ډیر دلچسپ او دلپذیر صورت سره مطالعه کولای شی.

له دې جهته چې دا عنوان یو څه دوامداره، او مسلسل دی. توهیله کوو چې محترم لوستونکي د مجلې په پاڼو کښې د خواصو او عوامو په خاصیاتو پسې هم وګرزي، او په دې خصوص کښې خپل اجتماعي معلومات تکمیل کړي.

## خواص او عوام:

د خواصو او عوامو توجه د خپل ژوند په روزنه کښې په تیره بیا روزنه د انسان خواص څنګه کوي، او عوام ئې څه ډول؟ عوام په دې طبیعي ژوند کښې څه ډول چې د خواړه ټوله عناصر باید وروزل

شي او تربوه انتظام لاندې و پالل نو دلته مونږ ددوی په ژوند کښې د ټولو د ژوندانه د عناصرو د روزنې څخه ددوی د خواصو څخه صرف نظر کوو یوازې جنس د انسان په دوی کښې

د روزنې د کیله یو څه سپڅو عوامو ته ممکن د طبیعي عالم عناصر هم ښه نوی معلوم او په دې هم البته ښاي نه وی بوه چې طبیعي عناصر څنګه روزل کیږي په تیره بیا چې د انسان روزنه څنګه کیږي؟.

عوام پرته له نورو عناصرو څخه په واقعي او علمي ډول په روزنه د انسان پیځي نه پوهیږي بلکې دوی داسې پوهیږي لکه نورژوی (حیوانات) چې څه ډول وخوري، وڅښي او واغوندي نو روزل کیږي حال

دا چې انسان له حیوان څخه په ډیرو درجو جلا او بل شی دی.

ځانته خورکه، څښنګه، آغوستنګه او نورلري او روزنه ددې هم له حیوان څخه دونه فاصله

منع ته راولی لکه د مځکې او آسمان ترمنځ چې فاصله وجود لري عوام څه وخت چې یو انسان وخوري، وڅښي او واغوندي دوی قانع کیږي چې دغه انسان

وروزل شو او حال دا چې دا ډول خو حیوان هم تل روزل کیږي نو ولې بیا هم له انسان څخه ډیر جلا او متفاوت دی؟

ځکه نو د انسان روزنه یو بل کار دی چې عوام لا نه دي په پوه او که چیری دوی پوهیدلای نو به د انسان روزنه دوی داسې نه کوله لکه د حیوان؟

عوام د انسان په روزنه کښې یوازې د حیواني روزنې تابع دي دوی د انسان اخلاقیت اومورالستي) حقیقت پسندي (ریالیستي) او خیال

پروری (ایډیالیستي) ته هیڅ نه ملتفت کیږي، که انسان په رشتیا د دغو شیانو له حیثه

وته دوزلشي پرهغه به د انسان اطلاق څه ډول وشي .

او دي هم کله د انسان په ډول کار کولای شي؛ که چيري انسان له دې دوو حالتو څخه وتلی وي انسان نه ورته ويل کيږي او دده اکثر (تمثيل) هم له انسان څخه دوباره بايد ونه شي .

دا ځکه د منطقو په اصطلاح انسان هغه ځاته وائي چې د هغه قوت د ادراک ورنکي وي چې کليات او جزئيات درک کړای شي ، او په علمي قانون هم د غه قوت ته نفس ناطقه ويل کيږي ځينې خلک داسې گمان کوي چې دا قوت د انسان تکلم بلل کيږي ځکه چې تکلم دده او حيوان ترمنځ يو فصل دی ځکه چې فصل يو خاصه ده چې په ماهيت کښې داخله ده او بې له يوې نوې نوعې په نورو نوعو کښې قطعي نه پيدا کيږي ، که څه هم ځوله حيوانات چې موږ ئې نه شو حسولای يو ډول خبرې او مفاهمې سره کوي چې د هغو اصواتو او زمونږ د تکلم ترمنځ په حقيقت کښې غير له مفاهمې څخه په مخصوصه اصواتو سره بل فرق نه ليدل کيږي .

عوام د غه قوت چې د شيانو کليات او جزئيات بايد په وپيژني په کرکه ئې نه پيژني او د روزنه ئې هم نه شي کولای او څه وخت چې انسان دا معرفت او دا قوت ونلري څله بايد انسان وبلل شي ؟ بل عيب خو دا دی چې عوام که څه هم دا معرفت تل ونلري ، بنائي لکه

حيوان نو ژوندی شي ملتفت چې د دوی ژوند انساني غوندې تيريږي او که د حيوان په ډول؛ عوام په دې هم نه پوهيږي چې انسان او حيوان (د کلي او جزئي) د پيژندنې د قوت په فارقه څو نه سره جلا شو ؟

او په داسې حال کښې چې ددې قوت او فارقې موجوديت او مرکزيت هم په انسان کښې موروثي او جبلي دی او که څوک : خپل وراثت او جبليت معرفت او پيروي ونکړای شي هغه ته کله انسان ويل کيږي ؟

حضرت مير احمد المجددي متخلص په (اظهر) دا مدعا داسې ثابتوي :

هر که از کيش پدر بيرون نيايد عاقبت
ملک موروثي بعقبی باغ جنت ميخورد

هر که از شهر مناهي او بهر دررونهد
از وطن خارج بهر جا ضرب عزت ميخورد

عوام هر کله چې انسان په خپل انسانيت عالم او عارف نه وي هغه هم په دوی کښې انسان بلل کيږي او په تيره د بوه ژوندي انسان نسبت ورته کيږي او له دې څخه بې خبره دي چې شاعر ويلي دي:

هر که او عارف نباشد زنده نيست
قرب حق د الايق وار زنده نيست

عوام ممکن هر چا ته انسان ووايي ځکه دوی د انسان مفهوم لکه چې دا بولي چې دی هم لکه حيوان د غه خوراک او څښنګ کوي؛

او د انسان دې ډول مفهوم ته د خوشحال دا نسبت کوي :

زه به ورته نه وايم سړی چې تش کالبد وي . عوام نه پوهيږي چې ډول دي چې دوی د هر شي روزنه نه شي کولای بلکه دوی د مخه له روزنې څخه د سړي ، سړي توب او ناسړي توب هم نه تر له پيژني ، او ددې قاعدې څخه خو به خپله معلومه سي چې د دوی د پاره روزنه (تربيه) خو يو بل بيل کار دی .

دعوامو سړی بولي هغه څوک بنائي چې وي چې ددوی له خوا سړی بلل سوی وي بل څوک که چيری د دوی سړی سړی و نه بولي ، هغه هغه څوک دی البته چې به تش نامه د سړي نه خطا وزي به تيره بيا دې ته اړ نيږي چې به د رشتيا سړي توب هم وغواړي او د خپلو شرايطو سره سم .

ناسړي د دوی هم هغه څوک دی چې بولي دوی ناسړي بللي که څه هم د نورو د خوا مطلق مظلوم ، عاجز او بيچاره وبلل شي ، دعوامو دی انتخاب ته چې څوک د سړي او ناسړي په باره کښې يو څه وگوري ور معلوم سيږي چې دعوامو روزنه هم د انسان په حق کې ډېره نيمگړې او خارج نظر او بايږ ده او ولې د انسان د روزنې په هکله د غه انسان بايد سړی و شميرل شي ، د دوی عادت دا دی چې ياد شو ، دا ځکه چې هر څوک هم د خپل عادت پيروي کوي اعم که عادت ښه وي او که بد:

خوشحال خان بيا داسې وائي :

هر خسيس په خساست کښې خپل عادت کي

به عوامو کښې که چيري په حقيقت سره سړي يعني روزلي انسان پيدا شي دو نه قدر

او قيمت لري چې عوام حتی خپل ځانونه ترهغه پورې هيڅوك نه بولي، او ورته تسليميږي او د استخدام پوافتخار بولي اوس

دغه قدرو قيمت هم پخپله په عوامو کښې پيدا شو ځکه ويل شويدي چې خواږه ولي قدرمن دي؟

خوشحال وايي:

که تروه او ترخه نه وای په جهان کې
د خوږو به قدر به څوك وای پوهيدلی

که چيري عوامو هم لکه هغه سړي، سړي پتوب درلودای، نو په دوی کښې به سړي کله معلوميدی؟ چې د دوی دخوا به ټولو وټاکل شي.

عوام بدې ځای کښې هم د خپله حاله څخه دونه ناخبره باته دي چې پخپله د دوی موجوديت معلومدار ده د سړي قدرو قيمت

ثابتوي او د قدرو قيمت اثبات هم د پوشي په ضد ثابتيږي.

عجبه خو دا ده چې عوام پخپله د هرشي د دوزني په قانون نه پوهيږي ليکن دوزلي شي يا دوزلي

انسان ژر پيژني او په لوړه ستر ګه هم ورته ګوري او د خپله ځانه څخه ئې ډير لوړ او پورته هم بولي.

که چيري څوك ووايي چې داولي؟

ويلای شو چې دوی دوزنه او قانون ئې مني او که د دوزني د قانون پالنه او عمليات له دوی څخه وغوښتل شي هغه وخت دوی بدې پالنه او عملياتو نه پوهيږي نو خود موږ دوی داسې ونمانځل چې دوی ګواکې په دوزنه نه پوهيږي.

په عوامو کښې له دغه کبله دوزلي انسان ډير لږ ليدل کيږي نو دوزلي انسان په دوی کښې تل ډير مقدس، پير، مشر، ملا، مقتدی او رهنما حکم لري او ټول ئې پيروان کيږي هم او په خوله ئې هم کوي او د هغه دامر او هدايت څخه هيڅ نه چپيږي.

په عوامو کښې که پوڅوك د دوی په پوهې پوځه فاضل وبلل شو سمدستي د دوی دخوا په قدسيت سره منل کيږي او د دوی مقتدا کيدلای شي.

حتی دوی ئې سمدستي پيروي کوي او بدې هم نه پوهيږي چې دوی ته دې سړي پو ډير لږ فضيلت دونه زيات

ښکاره شو لکه پښه چې وي نو بدې سره خو هم داسې د دوی په اعتقاد او د دوی په وينا داسې مقدس، داسې پير

داسې ملا ونه بلل شو چې دوی دي دونه ورته معتقد شي چې د پيري او ولايت په درجه کښې ئې راولي.

بدې ځای کښې د عوامو دې ته هيڅ فکر شوی نه دی څو چې اغلب داسې ليدل شويدي چې د پو سوچ پوچ کافر په پوڅو صنعتکاريو او جملي خبرو خطا

وتلي او په خوله ئې کړيدی هغه وخت چې بيرته پوهيدلی دی ډير متحير شوي او ډيره خواشيني ئې څرګنده کړيده او عوام لدې سببه تل ډيو ډول لويو او

درنو خطراتو سره مخامخ دي دا ځکه چې په دوی کښې پو لږ فضيلت د پير، ولي او مقدس درجه ژر پيدا کولای شي.

حال دا چې داخو د دوی پوه لويه اشتباه ده او بيا کله داسې کيږي؟

که چيري پو ولايت يا قدسيت او غوثيت په لږ څه او معمولي ډول حاصليدای نو اوس به هر څوك د غوث مرتبو او مقاماتو په

لږ کښې بلل کيدای نو ځکه پو ولي يا غوث لکه خوږه يا «عنقا» غوندې غواړو او نه ئې مومو

او د عوامو د سطحي عقايدو او عواطفو څخه که دوی وغواړي ژر ولي او غوث راوزي، او د دوی هغه ژر مني، او د دوا قيمت او باور موردد ئې هم بولي.

بلعکس د خواصو عقايد او نظريات هيڅکله دونه ساده او سطحي نه دي چې پداسې لږ څه قانع شي ياغاړه په وباسي بلکې داډول اقرار کوي:

په برع په مصلحت د عشق کار نه دی په ليدل په اوريدل شي دا پيدا عوام د لږ فضيلت په منلو کښې هم داجنبه نلري چې د نقاديه ويدي

نه وي بلکې بدې وبلو کښې دوی نه سره قياسيږي.

«چې ګل غواړم له تا نه ستا
د باغه د بوستانه»
«که خس دا عنايت کړې هم
په ګل ئې ولی ما»

دا د دې جملې که څه هم په خپل محل او مفهوم کښې ډيری معقولي او رښتيا دي ليکن عوام کله د

پو لږ فضيلت په مثبتي اثبات کښې داسې حق لري چې دونه معتقد او داسې قائل شي؟

بدې مورد کښې بايد متقابل وضعيت ته ملتفت شي، بيا نو هغوی نه منونه و شي او په هغه ځای کښې

چې دوی لږ شی ډېر وبالله او یا ئې ډېر عوض کاږه سبب ئې دا دی چې په لږ سره ئې قناعت وکی او دلته خو دا لږ یو داسې لږ او یو دی چې د لوی او ډېر پامساوی په سترګه نه ورته کتل کیږی ۰

عوام ځکه چې طبیعی ناروزلی* بلل کیږی او دا هم یو طبیعی خبره ده چې ناروزلی نسبت روزلی ته په روزنه نه پوهیږی انسان هم څه وخت چې وروزل شی د عوامو څخه به وزی، بیا به نو روزل کیږی ولی په دې چې په دوی کښی دوی نه د روزنی قانون نشته تر اوسه چې انسان روزنی ته را دعوت شوی دی د عوامو څخه جلا شوی بیا د دوی روزنی امکان پیدا کړی دی که څه هم د عوامو د روزنی

قانون نه دی زده او نسی کولای چې په دې قانون سره کار وکړی لیکن روزلی انسان ئې ډېر خوښ او د دوی منلی دی دا هم په دې نسبت چې دوی هم د روزنی ته مستعد بلل کیږی او د روزنی د قبول استعداد په دوی کښی شته او د قدرتی نامساعدت او ملګری څخه بیرته ناروزلی پاتیږی ۰

اوس که چیری د غواړی چې دوی باید وروزل شی نو د روزنی قدرت باید په دوی کښی اول پیدا کړه شی بیا نو وګوری چې دوی هم د روزنی وړ دی او که نه :

د دوی څخه روزنه نه غوښتل کیږی دوی باید روزنه وغواړی که چیری دوی پخپله روزنه وغواړی د دوی استعداد نسبت هغه چا ته ډېر بلل کیږی چې نه روزنه پیژنی او نه ئې غواړی په عوامو کښی که وغوښتل شی چې روزنه پالل شوی او رواج شی باید نور روزلی خلک په کوښښ ځکه دوی خو خورا ډېر مقلدین دی نو د دې طبیعت په اثر د روزل شویو خلکو څخه د روزنی چمونه زده کوی او کرار کرار لکه هغه روزلی خلک دوی هم روزل کیږی ۰

لکه اوس د دې لپاره چې موږ زیاتره عوام بلل کیږو او د بل او خپل ځان په روزنه نه پوهیږو او د دا را څخه غوښتل کیږی چې ګوله وروزل شو نو د یو څو روزل شویو والی انسانان که څه هم بر دی وی دلته په موږ کی لازم وبلل شو ۰

او کیږی چې دغه فارمول مثبته نتیجه هم ورکړی

او په هغه ژوند چې موږ دلته نه پوهیږو ممکن له دوی څخه ئې زده کوو او خپل ژوند بیا له دې دا ډول وساتو او دا ئې روزو لکه نورو چې روزلی او ساتلی دی ۰

ځکه چې انسان خپل ځان په بل کښی ژر پیدا کولای شی ۰ او په خپل ځان کی دغه خپل ځان لیدلای شی حال دا چې دې ته خو لیدل نه دای او که چیری بل وویني هغه وخت چې خپل ځان ورته معلوم شی دې ته لیدل البته وبل کیږی

ځکه خپل ځان ئې د بل په نسبت ښه ولیدی او ور معلومه شوه چې دی پخپله څنګه دی ، په تیره روزلی دی که ناروزلی ، ښه دی او که بد ، او په عکس د دې که دی ښه دی او که بد نو ده ته باید څه فرق و نه لری . ولی چې قاعده ده ۰

نو دا جوته شوه چې دوی خو د روزنی په هیڅ ډول نه پوهیږی او که د خپل ځان نه سره پاته شی دوی باید دوباره کوم معرفت و نه لری چې دغه خپل ځان د یوه بلوه و پیژندلای شی او که یوازی د ځان پیژندنه لا د دوی د وسه نه وی بوره سوی ، نو روزنه به په خپل ځان کښی د کومی خوا معلومه کړی چې څنګه ده ؟

او په تیره بیا څه په معلومه کړی چې دې پخپله څه او ښوکه دی ؟ او په حقیقت کښی انسان د خپل روح او وجدان له کبله که څه هم هیڅ شعور و نلری ، خو په طبیعی ډول یو ډول حساس ، یو ډول دراک ، یو ډول سمیع او بصیر دی ، چې تل د خپل ځانه څخه داسی الهام اخلی ۰

« هم حیوان ئې هم سړی یې هم ملک »
« که ته څه په ځان خبر شی له حسابه »

## افکار

هغه چې د انسانیت دا بادی په نامه د فعالیت میدان ته غورځی او قول ئې د عمل سره برابر وی هغه باید د اجتماع زړه و بلل شی ۰

[ژانیتن]

ژوند برله پسې حرکت دی هغه څوک چې به بې معنا تسلاؤ د حرکت څخه پاتیږی هغه باید ډوډی خواره مړه و بولو ۰

[بارتل]

د (کریمي انځکزي) لیکنه:

# انساني ارزښتونه

یو د روح پوهانو څخه د انساني ارزښ په باره کښې وايي:

موږ قوانینو ته د لزوم ترانداز زیات اهمیت ور کوو خو انسان او دهغه انساني ارزښتونو ته لږ څه توجه کوو.

یو د روانشناسانو څخه عقیده لري:

د انسان خارجي شخصیت د هغه په طرز تفکر او غوښتنې پورې اړه لري

هر څوك هر ډول چې فکر کوي هغه ډول رفتار کوي او په بل عبارت غوښتل او کول دي.

یو بل د روح پوهانو څخه وايي:

ژوند پر ته د نزاع، متمادي کشمکش او مجادلې څخه بل شی نه دي او هر پرمختګ د فکر او جسم د زحماتو نتیجه ده.

وايي یو فرانسوي عسکر په خپله کوڅه کښې قدم واهه او ویل یې:

زه باید مارشال سم.

ده د غوښتنې لومړی اثر داؤ چې هر راز مشکل یې زغمی او د امکان تر حده پورې یې زیات کیښ او فعالیت یې کاوه تر څو وروسته تر ډیرو زیاتو ګاللو او خواریو څخه د مارشالۍ آرزو ته ورسید.

داراده قوه ډیره لویه نیرو ده چې هر کار په آسانۍ سره سرته رسوي.

انسان چې د هر څه اراده وکړي د یوه عزم په نیولو سره خپل هدف ته رسیږي.

ناپلیون بناپارت عقیده درلوده چې:

د (نه) کلمه د یا انسان په سر کښې نشته که یې خپله جوړه نه کړي زما د نه کیږي نه یې

سم کولای څخه ډیر بد راځي او وايي دغه راز کلمات باید د لغات د قاموس څخه حذف شي.

هر ځوان د رلوونکی د خاص غرور او ارادې چې دده سره دژوند په تحریك او ابتکار کښې مرسته کوي ګرمه روحیه نشاط ور کوي، خستګي ځنې لیرې کوي.

د هر ډول خستګۍ او شکست په مقابل کښې نه مایوس کیږي او په خپل قوي اراده ژوند مخ ته بیايي.

( د ٤ مخ پاتې )

# شعر څه شی دی او څه صفات لری؟

تاثیرنا که شعر وایو چې موسیقي یو هان هغه شعر بې له تکلیفه د ساز و سره پر یو مقام او خیال باندې ویلای سي او که چیرې د موسیقیدانانو له خوا تردید شي نو دې

په و پوهیږي چې په شعر کښې کومه سکته ګي او بې وزني یا غلطي شته.

د پخوانیو لویو شاعرانو شعرونه ټول پر موسیقي باندې تطبیقیږي او ټوله لویه موسیقیدانان همیشه د لویو شاعرانو شعرونه له ساز و سره وايي ځکه چې یو خو د موسیقي له پردو سره په اسانۍ تطبیقیږي او بل

دا چې لفظي ترکیبونه د شعر پر اصولو باندې جوړ شوي دي او هم یې معنوي معنی او صفات ډیر لوړ او د قدر وړ دي.

لکه د مخه چې ما وویل په شعر پر اوریدونکو باندې په اغیزه کوي او تر تاثیر لاندې د اولي چې تر ډیرو وختو پورې یې د اوریدونکو په دماغ کښې خوند او لذت پاته وي لکه طبیعي ګلان چې ذاتي عطر او رنګ لري نور شعرونه چې په زړه او ویل کیږي د شعر د قانون له نه مراعات کولو څخه چې د بعضو شعرا وو له خوا توجه نه کیږي پر کاغذو باندې بې خونده پاته کیږي نو

پر شاعر باندې لازم دي چې یو لږ څه پدې مهمه موضوع کښې توجه وکړي چې شعر یې هم په ظاهري شکل صحیح ویل شوي او هم په معنوي صورت د لویو وصفاتو خاوند وي.

( پای )

ژباړونکی: دکتور گل محمد نورزی

# په لرغونو زمانو کې د افغانستان او منځنۍ آسیا کلتوري روابط

هغه خلک چې یو وخت په لرغوني افغانستان کښې اوسېدل د دوی د تاریخي سرنوشت په باره کښې زموږ معلومات ډېر لږ دي وخت پخوا تر د دیمه قبل المیلاد یعنې د یونان، باختري دولت د جوړېدو تر وخته پورې اوسېدل، دغه لرغوني زماني یعنې د ډبرو او فلز لومړیو دوری زموږ لپاره بالکل په تیاره کښې وی. په وروستیو لسو کلونو کښې کوم ملاند ارکیالوژیکي کشفیات چې د شوروي

اتحاد د منځنۍ آسیا او افغانستان په برخه کې شوي دي پدې دورو به روڼا اچوي. د دې سیمو د خلکو تاریخ اوس کیدای شي چې په خپله د تاریخ په سرچینو کښې ولټول شي. په لرغونو زمانو کښې

د دې سیموا دت کلتوري روابط او اکثره د تاریخي سر نوشتونو یووالي چې د دوی سره یوځای کوي د زیاتې علاقې وړ دي. په ډېره پخوانۍ زمانه کښې منځنۍ

آسیا ته د انسان پښه راغلې او هلته میشته شوې ده. د وخش سند د قزل کلا کلې کشف شوي آثار کیدای شي چې د شیلک لومړۍ دورې حتی لا زیات لرغوني وخت ته منسوب شي. د ترکمنستان د کرسناودکس په شبه جزیره کې راغونډ شوي افزار په شیلک

دورې[۱] پورې مربوطېږي دغه درشت لاسي افزار چې په کرسنادکس کښې پیدا شوي او د پالیولیت لومړۍ دورې ته منسوب دي د مدیترانې د همدې دورې کلتور سره یو ډول شباهت لري.

تقریباً د همدې دورې افزار ولې بالکل په بل ډول په تیان شان، دا ورچ شند په وادۍ، د کوچنۍ کارا تاوو (جنوبي قزاقستان) په یوه سلسله نورو ځایونو کښې

پیدا شوي دي. او دغه په جنوبي شرقي آسیا کښې زښت ډېر دي. د دې مختلف الانواعو کلتورو متقابله روابط ډېره زیاته علمي دلچسپي لري، د دې متقابله

روابطو د پوهېدو لپاره هغه د لرغون پېژندنې صحرائي تحقیقات چې په منځنۍ سیمې خصوصاً په افغانستان کښې باید ترسره شي ډېر زیات به گټور وي. په تاجکستان ترکمنستان او ازبکستان کې هغه یو څو لس گوني مجسمې چې لاس ته راغلې دي د ډبرو د ډېر پخوانۍ عصر یعنې منځنۍ پالیولیت دورې پورې اړه لري.

د دې دورې نسبتاً روښانه کشفیات چې جهاني شهرت یې گټلی دی د افغانستان او شوروي اتحاد سرحد ته نژدې د تورگان دریا وادۍ د تیشیک تاش په مغاره کې شوي دي. د مغارې قشر په

رسوب کښې پنځه کلتوري طبقې پیدا شوې چې په هغه کښې موستیر[۲] فورمه چکماکي افزار د سایبریا د غرنۍ وزگړې، هوسۍ، خرس هډوکي او نور نښانې پکښې ظاهرې شوېدي.

په تیشیک تاش کښې د موستیر دورې د هلک جسد منحصر به فرد دیوانر دی. دغه تدفین شوی جسد په مدني (کلتوري) قشر کې پیدا شوی دی دغه جسد په تصادفي صورت نه بلکه په تشریفاتي مراسمو سره ښخ شوی دی.

د دې خبرې لپاره په خپله د غرنۍ وزگړې ښکرونه چې د مړي په شاوخوا اېښودل شوي دي شاهدي ورکوي.

د موستیر دورې کلتوري روښانه تحقیق په تیشیک تاش، شمالي افغانستان او د قرم کمر مغارې په لاندنۍ طبقې

---

[۱] شیلکی کلتور د ډبرې عصر د ارکیالوژیکي کلتور لرغونې دوره ده شیل په فرانسه کښې د یوه کوچني ښار نوم دی. څنگه چې د دې کلتور مرکزي ښار ته نژدې و، نو د هغه ښار په نوم یې شهرت وموند.

[۲] موستیر د ډبرو عصر منځنۍ وخت ارکیالوژیکي کلتور دی. دا هغه وخت دی چې یو روپلا یخ (منجمد) دی او په فرانسه کښې د موستي غار ته منسوب دی چې د دغه وخت د یوه انسان تیپ پکښې وموندل شو.

کښې هم کشف شوېدی .

دمنځنۍ آسیا پاسېنۍ پالیولیت(۳) ډېره لږه مطالعه شوېدی.

په تاجکستان کښې د خوجي غور شمالي افغانستان کښې د قره کمر په ایران کښې د خوتو کلکسیو نو نه په عمومي طور یو بل ته نژدې او دمنځنۍ ختیځ د پالیولیت دوري دا نژدې برخې کلتور سره حتی مشابه خصوصیات لري .

دمیزولیت دوري مجسمې د منځنۍ آسیا، منځنی ختیځ د زراعتي کلتور تر لرغوني پیدایښت تاریخي وړاندې والی لري، نو له دې کبله ددوی تحقیق هم خاص ارزښت لري.

د ترکمنستان د میزولیت دوره پوره تحقیق شوېده د جبیل، دم دم چشمې او کایلیو په مغارو کښې د کوچنیو چکماکي افزارو، هندسي رسمونو لوی کلکسیونو نه قبول شوېدي.

دحیواناتو، ماهیانو د هډوکو زیاته اندازه موندل دې نتیجې ته رسوي چې ددا یو پدې دوره کښې اساسي پیشه ښکار او ماهي گیري وه .

ددې ابتدائي ډېښو موندنه دا ښئي چې قولني مخ په زیاتېدو وی.

دمیزولیت دورې دانسان کلتور ددوی اقتصادي ژوند او مذهبي تصوراتو د پوهېدلو لپاره هغه تصویرونه چې دوی په ډېرو رسم کړي

اود جنوبي ازبکستان د زاروت سامي په وادي کښې کشف شوېدي ډېر زیات ارزښ لري .

درسمو نو ښت ډېر گرد یونه په ریالستکي توگه د غوښکیو کلی د غرنیو وزرمی او ښکار-څن دلیندو سره ترسیمه وي .

په اکثرو تصویرونو کښې د ښکاری د ښکار صحنه تمثیل شوېده دا سې ښکاري چې تصویرونو ای افسانوي معنی درلوده .

دمیزولیت دوري کلکسیونونه چې دقمره کمر او گاري مار څخه لاس ته راغلی دي، ددې ښیري

را کوي چې ددې دورې د کلتور څیړنه به په افغانستان کښې ښه نتیجه ور کړي دا افغانستان ددې ډېرې دوره لا تراوسه ښه نده تحقیق

شوې ولي بیا هم ژموږ سره پدې باره کښې داسې مواد شته چې د هغو له مخې د افغانستان او منځنۍ

آسیا تر منځ د جغرافیوي شرایطو شباهت ایدل کېږي .

محیطي نژدېوالي موږ ته دا امکان را کوي چې ددا یو ډېرې په دوره کښې ددې سیمو کلتوري

پرمختگ یو بل ته په نژدې لارو انکشاف کاوه .

په راتلونکو دورو کښې د افغانستان او منځنۍ آسیا تاریخي روابط کیدای شي دزیاتو روښانو

او ډېرو موادو په رڼا کښې وڅېړل شي .

دغو قولو زیاتو شواهدو څخه چې ددې سیمې د خلکو نژدېوالي په باره کښې موجود دي قصداً څنگ کوو او دغه

نژدېوالی دځینو نورو معلوماتو په اساس ښیو، لې تر لږه دخلور زرم کال قبل المیلاد د شروع نه تقریباً به قول

لرغوني ختیځ کښې دلاجوردو مصنوعات په جنوبي ترکمنستان، ایران او بین النهرین کښې خپاره شوي، اما بوازني معدنونه ئې چې تراوسه معلوم دي هغه د افغانستان په شمال ختیځ بدخشان کښې دي .

تر دې چې په سومیري حماسه کښې دیوه غرني هیواد اراتي په باره کښې روایت راغلی دی ( ممکن دا هیواد د افغانستان په شمال کښې واقع وی) چې دهغه هیواد اوسیدونکو د نورو موادو په څنگ کښې لاجورد هم استحصالول.

هغه لاجوردي تزئینات چې په منځنۍ آسیا کښې پیدا شوېدي هم د بدخشاني لاجوردو څخه جوړ شوېدي.

د څلور زرم کال قبل المیلاد په دوهمه نیمائي کښې د مثال په توگه په بلوچستان کښې د قلعه گل محمد کلی چې د کویټې ښار ته نژدې واقع دی او په

افغانستان کښې دمو نډیگک، دیمو راسي کلی چې د کندهار ښار سره نژدې دی په کښت او کرنه پیل کوي، دا کلی تر نورو نسبتاً زیات مشهور او تاریخي قدامت ښئي .

پدې ترتیب سره دمیزولیت دورې ښکاریانو، ماهیگیرانو مشهور آثار دافغانستان په شمال کښې واقع شوېدي ولي په همدغه وخت کښې د هیواد په

جنوب کښې ابتدائي زراعتي قصبې منځ ته راغلې، دغه سیمې تر یوه حده تاریخي او کلتوري پریکړه له دې ده که هم معمائي ده چې دافغانستان په شمال کښې دزراعت لپاره ډېرې ښې مساعدې سیمې شته چې هلته وحشي قبایلو کولای شوای په لرغوني بزگرۍ سره اکیا شوی وای .

(۱) ډېر ډېر پخوانی عصر څخه ډېرو نوي عصر ته د تکامل وخت. دغه وخت خلك کوچنوب پر یې دی زراعت منځ ته راغی .

دا باید وویل شي چې دلته دهندوکش د شمالي سلسلې نه ترامو د دریابونو حاصلخیزې ځمکې په ډیر شدت په ارغوني دوره کښې کرل کیږي .

دا هم امکان لري چې ددې پیښې اساسي عوامل بودې بوږ تیلي دي چې د افغانستان شمالي برخې دارکیالوژۍ له نظره چې تراوسه مطالعه شوي دا هم امکان لري چې د٦-٤ زرم کال قبل المیلاد په حدودو کښې ډیره ارغوني بزګري پیشه دلته شروع شوي وي او بیا

ورو ورو د حاصلخیزو ځمکو په لټون پسې جنوب ته تللي او هلته ئې د موندیګک د یمو راسي په ټیپ کلي جوړ کړي وي. په هرصورت د٥-٤ زرو قبل تاریخ کښې د ارغوني قبایلو د مشته کیدو نقشه دارکیالوژیکي موادو په رڼا کښې په جنوب غربي منځني آسیا کښې ښودل

شوي. د ملا تړ او سه د افرضیه هم شته چې د جنوبي افغانستان او بلوچستان قصبات د کومو ارغونو قبایلو له خوا جوړ شوي ؤ چې د ارغوني غربي منطقې څخه د لته راغلي ؤ .

ځموږ د موضوع لپاره ترټولو زیاته دلچسپي د موندیګک کلي لري چې د جنوبي ترکمنستان د ګیو کسیور وادي آثارو سره جوت کلتوري مقایسه کیدای شي. دغه مقایسه او تطبیق تر ټولو زیات د موندیګک د٣-٤ قشرونو د لوښو هم ټیپه نقاشي کیدای شي چې د

ګیو کسیو روادي د انیولیت دورې ورو ستي برخې د کلیو په لوښو کښې څرګندیږي. دغه خاورین لوښي چې په موندیګک کښې پیدا شوي دي . په ددې زرم کال قبل المیلاد تاریخ پورې اړه لري او دا سې ښکاري چې د دغه ځای سفالي ارغوني ارت سره نسبي رابطه لري او یو ډول له کومه راغلي دي .

د بلې خوا دغه سفالي ارت د همدغې مشابهي نقاشي سره د٣-٤ زرو قبل المیلاد په حدودو کښې د ګیو کسیور په کلیو کښې موږ ته معلوم دي په دې معنی چې تقریباً پنځه سوه کاله د مخه دغه ارت هلته تاریخي قدامت لري . تر دې علاوه تقریباً په همدغه وخت کښې چې د

افغانستان په جنوب کښې دغه معمائي لوښي پیدا کیږي د ګیو کیسورووادي په بیابان بدلیږي . د جنوبي ترکمنستان اوسیدونکو کولای شول چې د تیجن هریرود نه د افغانستان او بلوچستان منطقو ته ور تیر شي .

ددې موادو ښودل شو یو لار و د بیا نو لو لپاره

بله طریقه هم امکان لري څېړه دا ده چې موندیګک او ګیو کیسور وادي یو د بله ډیره زیاته فاصله لري، د مشهد نه ترهراته پورې ارته منطقه پرته ده چې ارکیالوژۍ تر اوسه تقریباً نه ده مطالعه کړي .

دا هم دامکان څخه لیرې نه ده چې کلتور ئې د ارغوني ګیو کیسور اوسیدونکو او موندیګک سره نژدې وکه ددې منطقو دانیولیت ددورې (د مسو د ډبرو پیړۍ) دا و سیدونکو ارتباط معیني لاري او عوامل لاتراوسه په تیاره کښې وي نو ددوی د تاریخي نژدیوالي سوال خو هیڅ طرح کیدای نشي . په رښتیا هم دغه مقایسه د موندیګک او جنوبي ترکمنستان د سفالي ارغوني ارت په نقاشي پورې محدوده کیږي بلکه د مادي کلتور په نورو اړخونو کښې هم لیدل کیږي په دې ترتیب سره دغه کلي نژدې والي د ځینو خاورینو و ډو مجسمو خصوصاً د ښځو لوڅي فورمه ډبرینو تنکو څیرې شوېو ستر ګو د ښڅیو سرونو ، مسي تزیینی سنجاقونو، د ماهي ګیرۍ چنګکونو، ډبرینو ډیووادو مسي نورو شکلونو ترمنځ موجود دي. ددې خبرې لپاره د موندیګک او جنوبي ترکمنستان مهرونه هم ښه دلیل کیدای شي .

دغه مهرونه نه یوازې په یو ډول نقاشیو سره ښائیسته شوي دي بلکه د خطونو د کیندلو تخنیک ئې هم یو ډول دي .

تر دې علاوه د جنوبي ترکمنستان ټول مهرونه لاستي لري یوا ځې یو مهر د لاستي پرځای په منځ کښې دوه سوري لري. اما د موندیګک ټول مهرونه په منځ کښې دوه سوري لري . ډیر زیات امکان لري چې د جنوبي ترکمنستان دغه یو مهر د جنوبي افغانستان څخه راوړل شوی وي، برابجي مهرونه چې د حیواناتو شکلونه ور باندې رسم شوي دي هم تر یوې اندازې شباهت لري په د یمو راسي کښې یو مینډل شوی مهر چې د ځنا ور تصویر لري. په د یمو راسي کښې یو مو ندل شوي مهر چې د ځنا ورو تصویر لري را پیادوي د بلې خوا حیرانونکي نژدیوالي په ګومبټ شکله کوټو کښې چې د ځښتو څخه تیاري شوي او یو ډول مخصوصي مقبرې وي چې د مړیو یوه د سته په

یکښې ښخیدل هم یکښې لیدل کیږي په موجوده وخت کې دا ډول مقبرې په ټول ارغوني ختیځ کښې یوازې په جنوبي ترکمنستان او موندیګک کې شته باید وویل شي چې دغه د مړي د ښخولو د عنعنو ترمنځ نژدیوالي یوه تر ټولو اطمینانی او په عین وخت کښې ددوی ترمنځ تاریخي، کلتوري او تر زیاتې اندازې پورې د نسبي نژدیوالي ښکارندوي علامه هم ګڼل کیږي .

د دوهم زرم کال قبل‌المیلاد په شروع کښې د موندیګک د کلتور سقوط لیدل کیږي، ددې سقوط عامل لکه چې څرګنده ده د ازبکستان څخه د لرغوني فرغاني ت.ن چوستي قبایلو هجوم سره ربط لري.

دغه فرضیه په وروستیو معینه شي اما اوس چوستي کلتور ډېر راپیدیخوا دودې یعنې د دوهم زرم کال قبل‌المیلاد پای سره تړي.

ددې نه پرته باید وویل شي چې د موندیګک سقوط په هغه وخت کښې منځ ته راغی کله چې په سند او پنجاب کښې دهډپې ښارونه له منځه ځي په ایران کښې کیساد شاه تپه او په جنوبي ترکمنستان کښې داسې لوی کلي لکه نمازګاه دیپه‌التین دیپه او نور.

امکان لري چې ددې حالاتو سره هندوستان ته د آریائیانو مهاجرت تړلي وي ددې تاریخي پرابلمونو د حل لپاره پدې منطقو خصوصاً په افغانستان کښې ارکیا-لوژیکي تحقیقات ضروري دي.

د زرم کال قبل‌المیلاد لمړي نیمائي برخي ارکیا-لوژیکي آثارو مطالعه تراوسه بالکل کمه شویده اما د بیلو بیلو کلیو حفریاتو په پوره وضاحت سره د باختر، پسارفیان، مارګیان، سغد، درانګیان (د افغانستان په سیستان کښې نادعلي) او آراکوسیا (د موندیګک پاسني برخه) ترمنځ کلتوري یووالي وجود حتی داسې فرضیه هم شته چې ۷-۶ پیړۍ قبل‌المیلاد ددغې ټولې منطقې په یوه سیاسي قلمرو کښې داتلل.

دهغو بحراني واقعاتو په‌شرح باندې به‌دلته نه دریږو کوم چې د مقدوني سکندر له فتوحاتو، دهغه د یونان باختري دولت تشکیل پوري چې د افغانستان شمالي برخې او دشوروي اتحاد منځنی آسیا جمهوریتونو ځینې سیمې شاملې وې مربوطې دي.

دومره باید ووایو چې تر وروستیو کلونو پورې موږ د لیکل‌شوو آثارو له مخې فقط دومره پوهیدو چې دغه دولت دخپل مرکز باختر (دمنځنیو پیړیو بلخ) سره د کوشانیانو کوچي قبایلو دهجوم په‌سبب سقوط وکړ.

د سورخان‌دریا وادي او جنوبي ازبکستان کښې د وروستیو کلونو تحقیقات چې د کوشانیانو فاتحانو په باره کښې شویدي موږ ته ددوی د مادي کلتور په برخه کښې ابتدائي تصور لاس ته راغلی او د هغه په استناد ویل کیدای شي چې دا وخت کوشانیان پوره مسکون شوي ؤ.

دخالچیانو دسیستماتیکي حفریاتو په‌نتیجه کې هغه قصر حاکمانو دقبل‌المیلاد په‌اوله پیړۍ کښې را برسیره‌شو چې کوشانیانو لومړی آباد کړی ؤ.

دغه یو بوډیز عمارت لویه عمومي دروازه دایروی دهلیزونه، لوی سالون او فرعي عمارتونه درلودل.

دعمومي دروازې او سالون په‌دیوالو کښې مجسمې او دیوال په‌مخ باندې مختلف‌اللونه نقاشي شویده نقاشي خرابه شویده یوازې دومره وشوه چې دځینو نباتاتو او هم د کوم نارینه نقاشي لاس ته‌راغله، مجسمې ښې ساتل شویدي.

په خالچیان کښې داتینا (۴) ساتیر (۵) سرونه د ګیر-لیاندانو شکلونه (۶) درقاصو ښځو دیوې پیغلې مجسمه چې تمبورئې په‌لاس کښې دی درب‌النوعو نیم تنه مجسمې دارفیست (۷) سر او داسې نور آثار موندل‌شویدي.

ددې آثارو مخو نه ځینې دومره تخیلي دي چې ممکن تش تصویر وي.

دساتیرو د مخونو تراژیکه بڼه سړی ته دیونان رومي هنر په‌ځای یوناني هنر وربه‌یادوي.

دلته ددې شکله دخاصي توجه وړ دی، فکر کیږي چې دا به د شاه او ملکې تصویر وي، ددوی د پاسه محافظ کوونکي رب‌النوعي ولاړ دی، ګمان کیږي چې منځنی شکل د کوشاني شاهانو دګیرای له‌خاندان څخه کوم‌یو پادشاه‌وي یا داچې ممکن ښځه ګیرای وي.

---

(۴) اتینا، دلرغوني یونان په متیولوژۍ کښې د عقل او جنګ رب‌النوع ده.

(۵) اساتیر، د لرغوني یونان په‌میتولوژۍ کښې د شرابو او عیش رب‌النوع ؤ.

(۶) ګیر-الیاندان، کوچني ملکان چې د ګلو امیلونه به ئې خلکو ته وړاندې کول.

(۷) ارفیست، ګرانه د ساز یوه آله‌ده هغه څوک چې دغه آله وغږوي هغه ته ارفیست وایي.

گیرای د کوشانی لمړی کادفیز څخه دمخه تیر شویدی چې د یوچیا د ښځو قبیلو څخه یوې ته منسوب ؤ .

گیرای‌سا کیان له‌هغه‌ځایه وشړل‌اودآمو درباب په‌دواړو غاړو ئې ځان محکم کړ .

د گیرای تصویرونه چې په سکو باندې موږ ته رارسیدلی دي دتصویر له‌مخې د خالچیان مجسمو ته نژدې ښکاري .

په‌عمومي صورت‌فکر کیږي چې دغه گروپ دگیرای قبیلې د اشرافو نمایندگان‌وي چې‌په شاهي میلمستیا کښې گډون کوي او مرکزي صحنه هم ددوی لپاره هدیه شویده .

دخالچیان دقصر د کشف سره په افغانستان کښې د سرخ کوتل مشهور معبد ته‌یادول درسته خبره نه‌ده ځکه دلته‌هم گیرای دکوشانی لومړی کادفیز څخه دمخه‌تیر شویدی چې‌د یوچیا دښځوقبیلوڅخه یه‌شان قطع شویدی .

د کاپیتیل(ستنې) یوټټې برخې د مجسمې تزئینی پارچې او داسې نور شیان موندل شویدی که‌د سرخ کوتل‌معبد په‌رشتیاهم یوځل‌ا پدیځوا زمانه یعنی ۱-۲ پیړی قبل‌المیلاد کښې د خالچیان ترقصر ودوسته‌آباد شوی‌وی نو پدې‌صورت کښې‌زموږ په مخکښې دتاریخ له‌نظره یوه‌بله‌نوی‌لار خلاصیږی هغه‌داچې د باختری کلتور انکشاف دکوشانیانو په لومړیه دوره کښې منځ ته راغلی دی .

پدې برخه کښې‌زموږ دپوهې دمحدودیت سره سره دغه‌کشف شوی‌آثار د باختری هنر د لرغونی‌دورې متعلقو برابلمونو دپوهې لپاره واقعي‌شمزۍ جوړوي .

شلومبرژی‌لا ویلی‌دی چې‌د سرخ کوتل دمجسمې دمتهورا(۸) مکتب‌سره ډیرې‌نژدې او ددې‌سره داهم د امکان څخه لیرې نه‌ده چې د کومو کوشانی پادشاهانو تقلید ئې کړی‌وی .

پدې‌باره کښې د خالچیانو مجسمې‌چې مخ ئې د یونانی‌سبک علامې لرې‌خاصه‌علاقه راجلبوی چې‌ریښې ئې دیونانیانو باختری‌هنر ماقبل دورې‌ته رسیږی .

ددې‌ډولو یوشتنو مجموعه دگندهارا دصنعت‌برابلم سره چې‌ځینې آثار ئې پدې وروستیو کلونو کښې په منځنی آسیا ( جنوبی‌ازبکستان، جنوبی‌تر کمنستان ) کښې پیدا شویدی ټینگه رابطه لري .

دمخه‌مو کوښښ وکړ چې‌د نوو کشف‌شوو ارکیا-لوژیکي آثارو په‌مرسته ددې‌سیمو دخلکو دکلتوري روابطو خصوصیات وښیو .

راتلونکې ارکیالوژیکي تحقیقات چې‌ددې سیمو د ماقبل‌التاریخ آثارو په‌برخه کښې کیږی ددوی د تاریخ‌په‌روښانولو کښې بې شکه‌لویه برخه‌ولري .

(۸) متره‌یامتهورا، د هندوستان په شمال کښې د (جمنا) درباب په‌غاړه یوښار دی د هندوېزم په مرکزونو کښې‌دغه ښار یو له ډیرو قدیمې ښارونو څخه گڼل کیږی .

د «ځپلیار»ژباړه:

# نوی فلز

انگلیسی پوهانو اوس یونوی فلز کشف کړی دی‌چې دهغه‌فلز الستیکي‌قدرت نسبت نورو فلزاتو ته ډیر دی .

دا نوی‌فلز چې‌د (زم) په‌نامه یادیږی له دوو مادو یعنی ( زنگ او المونیم ) څخه تشکیل شوی‌دی .

نوموړی فلز چې تر فولادو نرم او سپك دی زنگ نه‌اخلی او هروخت چې‌حرارت ورکړه شی اوږدوالی ئې دوچنده کیږی .

## افکار

افسوس پرهغه چاچې په ژوند کښې کوم منظور نه‌لری اودورځو په‌تیریدو کښې کوم کار نه‌انجاموی هغه‌ژوندی نه‌دی اوژوند ئې ترځاروی بدتره دی .

# د نرګس مرګ

کله چې نرګس په ابدي خوب بیده شو د بڼ ګلونو دیر او ماتم مراسم پر ځای کړل په بڼ کښې دوا نوا وه او بو دویالي نه غوښتنه وکړه چې دژړا دپاره دوی ته څو څاڅکي اوبه پور ورکړي.

ویالي آه وکیښ او ویې ویل:
نرګس دومره ګران و که زما ټول اوبه اوښکې شي او د نرګس په تابوت باندې وشیندم بیا هم کمې دي.

ګلونو وویل:
رښتیا وائې، دهغې ټولې ښکلا سره چې نرګس درلود څرنګه کیدای شي چې تا ته دې ګران نه وای.

ویالي وپوښتل: آیا نرګس ښکلی و؟

ګلونو وویل: هو، کله چې به نرګس په ملاماتیدې او ستا په دوه ږواو بو کښې به ئې دخپل ښکلې بدن ننداره کوله ته باید ترموږ ښه وپوهیږې چې نرګس په رښتیا ښکلی و.

ویالي وویل:
ما ته نرګس له دې کبله ګران و چې هغه به پرملامات شو ما ته به ئې کتل، ما کولای شو چې خپله ښکلا د نرګس په ښکلو سترګو کښې وګورم.

(اسکاروایلډ)

---

# شعر او فلسفه

اوریځې په هوا کښې دي.

ځاګانې کښته په ځمکه کښې، هغه ځه چې به هسکو اوریځو کښې شته په ژورو ځاګانو کښې هم شته.

په دغو اوبو باندې هم هغه ننده ماتیږې د لوړ خیال او ژور فکر نتیجه هم یو ده.

ته یا خپل نظر ډیر لوړ کړه، یا په خپل ګریوان کښې سر ډیر کښته کړه.

دشاعر او فیلسوف فرق همدغه دی؛ ده شعر او فلسفه همدغه شان ګڼم.

[الفت]

---

# شپېلۍ

ورځ ولاړه، پر ځمکه سیوري
را کښته او خپور شو ددې وخت
دی چې دخپل منګي د ډکولو دپاره
چینې ته ولاړه شم.

دما ښام هوا او بو په غمګین را ګڼ مسته ده.
آه هغه ما د تیاري خواته بولی، په دې چپه
چیاني کوڅه کښې بو لاروی نه شته، هوا په
زور کښې ده د سیند څپې په تندي را پورته کیږي.
زه نه یم خبر چې خپل کور ته به بیرته ولاړه شم که به؟
نه پوهیږم چې په لاره کښې به څوک
را سره مل شي؟
دهغه ناپایه سیند په یوه کو چنۍ
بیړۍ کښې کوم ناپیژند ونکی
سړی ناست او خپله شپېلۍ
ږغوي.

«ټاګور»

# انعکاس

کوم وخت چې به لوی ځنګله کې ږغ
دځناورو شي یا چه د ترومپ له خولې نه
پورته یوه خبره شي کوم وخت چه
له اوریځو نه د تالندې آواز شي خپور د
یادغو ټولو ته شاته کومه ییغله په سندره
شي، ته په تش ما حول کښې بیا هغه خبر ګوی بیرته، هر چا ته
دخپلې خولې خبرې اوروې بیرته، ته په ږغ د تالندې
برېښنا او دځپو خبره، ته په سو یوستي د آوازونو دشپنو
خبره، ته هر چا او هر شي ته دده ږغ
ځواب وائې، ته دهمه وا ږو په غمو او
ترانو خبره، تا ته مګر څوک ستا د
سندرو ځواب نه وائي، ته ای شاعره!
یوستا د خبرو ځواب نه وائي.

«د پوشکین اثر»

کندهاري «رشاد»:

## خان ته !

خانه ته چې گڼې په نازو په نخرو ئې
خانتما په ټوکر مڅکه څوپیسو ئې

نه پوهېږم دپر دېوغوږو زور دی
داچې ستړی بیا د تېغ په صا فیدو ئې
دخپل کور دچرگان وهې بریتونه مروړې
مرگ دې مه وه دشتیا باز دخو کیا ږو ئې

ددوستی مړو ته تیغ ئې د پولادو
د خپلوی کور ته پوټی د اغزو ئې
دخوارهوا کا دزوی دسر دښمن ئې
دشیرین یتیم ورا ره په خوارېدو ئې

د تنگی کوڼوی د سر بوږنی اخلې
دتندی بوری ټغر ته پر کوڼو ئې
دبی وسه همسایه د بټی غل ئې
دبې وزله سینه دارد پیغ په کښو ئې

دمسکین بزگر دخیرې مشتك مېږه
دعاجز باغوان دخوارلاندې پېشو ئې
دبېچې بېلی مسافر دلاړی ژرگه
دلاړ ورکی چولاده لومه دېښو ئې

ښاد په ور که دیتیم دمور له غېږی
خوښ دوږود کورگی په وراندیدو ئې
دلیوه په څیر کمین کی همیش ناست ئې
دمظلومو مېږو دغوښو په ارزو ئې

تن ارمان په غېږ مېی کا بده کو ربیره
سبا بیا ددرباره سپو ته په سجدو ئې

## دشاعر احساس

زما خواته راغله!
څوك؟
محبوبا !
څه وخت؟
سهارمهال !



وړ پدله !
دچانه؟
د رقیب نه!
هغه څوك ؤ؟
پلار ئی !

د«لاهوتی»اثر:



ښکلی کړه دوه څله !
پرکوم ځای؟
پرسرو شونډو!



شونډان وه؟
یه !
څه شی وه؟
عقیق!
څه پول وه؟
لکه شکره !



سلوه ملته تندی چې مراد دی دړ کړی
ددرباره نظر روږد کړی په حملو ئې

کلی کودورته لوټه، بقا ئې غواړه
دمو ډی په برکت په غور ځیدو ئې

---

دننگرهار نه:
د«همراز»ننگرهاری رالېږنه:
ادبی ټوټه

## تاته وایم!

گرانی! نه پوهېږم چې په څه نامه دې وبولم...

څه درته ووایم...

که دڅوار لسمی سپوږمی دی وبولم ؛ خو دڅوارلسمی سپوږمی پواځی او پواځی د څوارلسم دپاره دی....

که دآسمان ستوری دی وبولم خو دغه ستوری تیاره گوټونه روښانه کوی .

که سپوږمی درته ووایم ؛ خو سپوږمی هم کله، کله د افق په شینکی فضا کښی له سترگو څخه غائبیږی ...

نو څه درته ووایم ! او په څه نامه دی وبولم...

ستا ښکلی نامه ته نه حیران یم ! نو څه دووایم، او څه ولیکم.. خو گرانی که د رواتواوبو

( په ۲۲ مخ کښی )

لیکوونکی عبدالمنان «امین»:

# د کندهار لاسي صنایع

کندهار چې د ګران هیواد یو تاریخي او لرغونی ولایت دی د دې ولایت نه یوازې د تاریخي او جغرافیائي موقعیت د درلودنې دي بلکه د زراعتي پیداوار مخصوصاً میوو ، او لاسي صنایعو لکه سوزني خامکک له کبله جهاني شهرت لري .

د خامکک ګنډلو صنایع چې د ډېرو کلونو راهیسې د دې ولایت صنعتګرو میرمنو ته په میراث پاته دي د دغو زحمت کښو او صنعتګرو میرمنو د سترګو او د

لاس د ګوتو د نقشونو یو زرین صنعت دی چې په داخلي او خارجي بازارو کښې ئې د زیات شمیر وګړو توجه جلب کړې ده .

د خامکک ګنډلو صنعت چې د نفاست او ښایست له لحاظه د هر لیدونکي توجه ورجلبوي او قوله وګړي ئې خوښوي ، په کندهار کښې د میرمنو د قولنې په تأسیس

او منځته راتللو سره د دې محیط یوه برخه صنعتګرې میرمنې په کښې شاملې او دا صنعت ورځ په ورځ د کورونو د چار چوب او محیط څخه راوزي او په پراخه

پیمانه ئې د نوي ډیزائنونو په طرح سره او د ګنډلو د طرز له مخې نوې بڼه ځانته غوره کړېده چې د خلکو انتظار ئې جلب کړی دی او دې صنعت په هر ګوټ کې علاقمندان پیدا کړي دی چې له دې کبله د خامکک ګنډلو انواع او اقسامو په مختلفو ډولونو ځانته بڼه غوره کړېده چې عبارت دي د خامکک دوزي ، ګلاباتون دوزي ، آینه کاري او داسې نور ، چې د کار

نفاست ، ښکلا او تزئین ئې د هر لیدونکي سترګې خیره او جذبوي نو ځکه ویلای شو چې طبعاً دا کار وخت ، زحمت او رنج ایجابوي .

کوم مواد چې د خامکک ګنډلو لپاره په کار لویږي هغه عبارت دي له وریښم او سپنې څخه او د کومو ټکرانو چې پرمخ ئې خامکک ترتیبیږي هغه مختلف اقسام لري .

د کندهار د خامکک دوزۍ یادستنې د کار په اړخ کښې نورې صنایع هم سته چې مشهورې ئې مسګري ، زرګري ، کلالي او بوټ دوزي ده او داسې نور .

## د مسګرۍ صنعت :

د مسګرۍ صنعت دا چې د افغانستان د لرغونې صنایعو څخه دی او کوم شیان چې په کندهار کښې جوړېږي په زړه پورې او مشهور دي چې د هغو له جملې څخه د لاس پریولو ګډوه ، دوشي ، پتنوس او داسې نور

چې ډېر زیات مشتریان لري خو ځکه چې توقع کیږي د مسګرۍ د فن د ډیزاین او طرحې په برخه کښې چندانې پرمختګ نه محسوسیږي .

## د زرګرۍ صنعت :

د کندهار د زرګرۍ فن چې عمده برخه ئې په طلا کارۍ پورې منحصره ده او د ډېره سابقه لري پدې ځای کښې د ښځو د فیشن او نارینو د فیشن وړه شیان جوړېږي او په ښه بڼه او ښکلو شکلونو مشتریانو ته اهدا کیږي همدارنګه د طلا کارۍ ښکلې صنعت په هرات او غزني کښې ډېر رواج لري .

## د کلالۍ صنعت :

د کلالي صنعت چې د لاسي صنایعو په لړ کښې په خپل وار په کندهار کښې ډېر لرغونی تاریخ لري پدې څو کلو کښې د دغه فن د کارکوونکو د ځینو تشبثاتو

له مخې ډول ډول لوښي په ښایسته رنګونو او مختلفو ډولونو جوړېږي د دې لوښو د جوړېدو او رنګ آمیزۍ طرز ډېر په زړه پورې دی چې د هر لیدونکي

خوښیږي او نه یوازې د ورځې په پراخه اندازه د مراجعینو د اړتیا په غرض پلورل کیږي بلکې په کورونو کښې د کور د

تزئین لپاره د استفادې وړ هم ګرزي .

## د بوټ جوړولو صنعت :

دا صنعت هم د خامکک ګنډلو په لړ کښې او ډېره سابقه لري چې په تېرو کلو کښې ئې یوازې

سلیپر او چوقي (چپلی) ډېر شهرت درلود او د هیواد د هر ګوټ خلکو علاقه ورسره درلوده .

(نور په ۲۲مخ کښې)

دمشاېخو پېژندنه:

غلام فاروق «انورزی»

# ملا شاه پسند اخوند

ملا شاه پسند صاحب (علیه الرحمه) د ملا محی الدین زوی او د خیرالدین لمسی دی، په خټه ابوبزی پوپلزی او د کندهار د نیش په علاقه کښې، په کوم ځای کښې چې ددوی د نیکونو ټاټوبی و په ۱۲۱۶ ش کال کښې زیږېدلی دی.

د ملا شاه پسند اخوند په شهره کښې دوه کتوب د وخت څخه د نیك او متقی انسان نښانې ځرګندې دي. ده د عمر په اوه کلنی کښې د علم او دین خواته ملا وتړله.

ددینی علومو د زده کړې دمخه خاصې علاقې او ذوق لامخې چې دده په زړه کښې ئې ځای نیولی و، ددینی علومو د تحصیل په لاره کښې ئې شپه او ورځ زیار و کیښ تر څو چې په دوولس کاله کښې ئې مروجه علوم دخپل وخت د لویو عالمانو تر لارښوونې او پاملرنې لاندې ټوله خلاص کړل.

دی په صرف، نحو، منطق، احادیث، تفاسیر او فقه شریف کښې چېه عالم و او ددغه علومو تدریس ئې طالب العلمو ته کاوه.

ملا شاه پسند اخوند صاحب د تصوف سره خاصه علاقه او ذوق درلود.

دلوړو عالمانو او د ډیرو ښو کسانو حضور ته رسېدلی و، دده طریقه قادریه ده.

ملا شاه پسند اخوند زیاتره وختونه په روژه نیولو تیروله او ځلوېښت ورځنې خلوتونه ئې کښېل، که څه هم دی د ګوښه نشینۍ طرفدار و خو د شریعت څخه ئې مخالفت نه خوښاوه او اجتماع ئې هم نه ایله کوله او د ټولنې یو اجتماعی او همدرد غړی و.

ملا شاه پسند اخوند پخپله هم د ارشاد مرتبې ته رسېدلی و او پخپل طریقت کښې ئې ډیر مریدان درلودل.

خدای بخښلی دورځې دخدای د بندګانو خدمت او د شپې عبادت کاوه.

هر ځای چې به داو بوچینه وه هو دې به ده د مسافرانو دپاره یوه پناه ګاه چې تکیه ئې بولی جوړوله.

مرحوم ملا صاحب عمومی لارې آبادولې، پرلویو ویالو به ئې پلونه جوړول، په دغه ځایو او سیمو کښې چې به ئې روانی او به نه وی هلته به ئې ځاهان او ارهټونه کښېل، په دښتونو کښې به ئې د اوبو د ویالو پرغاړه د تونانو ونې کښېنولې چې داوړې په موسم او تودوخې کښې د لارویانو او مسافرانو دپاره د هوساینې ځای شي.

مقصد دادی چې ملا شاه پسند اخوند خپل ټول جسمانی او روحانی طاقت دخپل قوم او ټولنې څخه نه و سپمولی او ده دعبادت تر څنګ خپل ټول عمر د خلکو په خدمت کښې تیر کړیدی.

ملا شاه پسند اخوند د ٤٥ کالو په عمر د بیت الله شریف او مدینې منورې په مبارکو ځایو مشرف شویدی

او په پای کښې د ۷۵ کالو په عمر په ۱۲۹۱ ش کال کښې ئې ددې فانی نړۍ نه سترګې پټې کړې او د دارالفنا څخه دارالبقا ته وصل شو.

ملا شاه پسند اخوند بر سیره پر دې چې یو روحانی او لوړ دینی عالم و، یو ښه پیاوړی شاعر او لیکوال هم و او په پښتو ژبه ئې ډیر اشعار ویلی دی.

څرنګه چې ملا صاحب یو متصوف سړی و نو دده زیاتره شعرونه تصوفی او اخلاقی دی او په هر ځای کښې ئې د زهد، تقوا او اخلاقو توصیه کړیده، دظاهری او مادی ښیګڼو څخه نفرت کوی او خلك معنوی ژوند او اخروی ګټو ته رابولی.

(نور په ۱۹ مخ کښې)

د غ، ايوبزي ژباړه :

# کټول خلک يو ډول وای

## د محيط او وراثت عامل:

هر وخت چې د انسانانو په هکله څېړنه وکړو وينو چې د هغوي تر منځ د څينو خواو څخه ورته والی او د څينو نورو خواو څخه زيات توپيرونه شته.

دغه توپير د تفکر، استعداد او ژوند د طرز، د پوستکي د رنګ، شکل، د قد د اندازې، د سترګو د رنګ او داسې نورو له کبله دی.

هر انسان د بهرني او دننني ساختمان، روحي او جسمي پلوه د يوه خپلواک واحد په حيث دی.

دغه خپلواک واحد په عين آزادي کښې د نورو سره ورته والی او زياته هم آهنګي لري.

د روح پېژندنې پوهانو د موضوع د اهميت له کبله په دغه هکله علمي څېړنه کړې او د څېړنو نتيجه ئې د بيلو بيلو نظرياتو په شکل د روحياتو په کتابونو کښې ثبت شوې ده، دغه نظريې څينې افراط او څينې تفريط ته متمايلې او څينې نورې اعتدالي دي.

امريکائي روح پېژندونکي (آلبرت) چې ډېره اعتدالي روانې نظريه ئې منځ ته راوړې ده وائي: «د انسانانو هر فرد په وراثت کې د محيط حاصل ضرب دی» يعنې که فرض کړو چې فرد مربع دی، قاعده ئې محيط او لوړوالی ئې وراثت دی، بديهي ده په هره اندازه چې د مربع د قاعدې اوږدوالی او يا د لوړوالي طول ئې زيات وي د مربع مساحت ډېرېږي، خو دا نه شو ويلای چې د مربع مساحت يوازې د هغې په قاعده يا لوړوالي پورې تړلی دی، ځکه کله چې د دغو دوو څخه هر يو نه وي مساحت په هم وجود نه لري.

د هرې نطفې د سلول په هسته کښې د کروموزوم ۲۴ زوجه موجود دي د دغو کروموزومو نيمې د پلار له خوا او نيمې ئې د مور له خوا زوي يا لور ته نقليږي.

په هر کروموزوم کښې د ژن په نامه ذرې شته چې په څينو ځاروو کښې په سترګو ليدل کيږي او په څينو نورو کښې د انسانانو په څېر حتی په قوي مايکروسکوپونو کښې هم نه ليدل کيږي.

ژنونه د وراثت عامل دي هغه ورته والی چې يو زوی يا لور د مور او يا پلار سره د بدن د څينو غړو له کبله لري له دې کبله دی چې د هغه غړي ژن ئې د پلار او يا مور څخه اخستی دی، نو ويلای شو هغه بيل بيل ژنونه چې ډېر وي د مور او يا پلار څخه اخلي د زياتو بهرني او دننني اختلافونو باعث ګرځي خو يوازې ژن هم د وراثت عامل نه شو ګڼلی.

ځکه په غبرګوليانو کښې په داسې حال کښې چې په دوو بيلو بيلو محيطونو کښې وروزل شي اختلافونه منځ ته راځي او دغه اختلافونه لکه څرنګه چې په مسلمه توګه ئې عامل وراثت نه دی، ارومرو ئې عامل محيط دی او په هغو کسانو کښې چې په يوه محيط کښې وروزل شي د اختلاف علت ئې وراثت دی خو بايد توجه وکړو هغه کسان چې د وراثت له لحاظه يو د بل په فرق سره لري د يو واحد محيط اغېزه پر هغو يو ډول نه ده.

نو کوم شی چې د خلکو د اختلاف منشاء ده محيط او وراثت دی لکه څرنګه چې آلبرت وائي «البته دغه د هغو اختلافونو څخه بغير دي چې خلک ئې د ارادې کارونو او چارو له حيثه او يا د ارادې د آزادۍ له کبله پيدا کوي».

## د تفاوت ګټې:

شک نشته چې د انسان او نورو مخلوقاتو پيدا کېدنه د يوه منظم او دقيق حساب له مخه دی،

د روحي او بدني ساختمان له حيثه د انسان په منځ کښې اختلاف هم د دغه قانون څخه جلا نه دی.

انسان يو اجتماعي مخلوق دی او دی ته اړ دی چې د اجتماعي ژوند لپاره ځان محدود کړي او د فردي آزادۍ څخه تر هغو پورې چې د ټولنې نظم ته زيان ونه رسيږي ګټه واخلي.

ټولنه يو شمېر اړتياوې لري او د دغو اړتياوو د پوره کولو

هر څوك د ځان نه پلاره باید یو کار او شغل ځان ته وټاکي.

څولنه لارښوونکي، قانون پوه، انتظامي قواوې، قضائي دستگاه، ښوونکو، لیکوال صنعتگر، دهقان او سوداگر ته ضرورت لري او تر دغو ټولو زیات یوه ټولنه یو داسي چا ته ډیره اړتیا لري چي اخلاقي لارښوونکي وي او په ټولنه کښي د اخلاقي فساد بیدینۍ او بې بندو باري سره کلکه مبارزه کوي او روحاني رهبر وگڼل کیږي.

څرگنده ده چي سخت او عالي کارونه یواځي پوهو او لایقو کسانو ته سپارلی شو او ساده او عادي چاري هغه چا ته سپارو چي د فهم درجه ئې لوړه نه وي او د هغه تر عهدې وتلای شي.

هر کله چي یوه وظیفه کوم لایق سړي ته وسپارله شي او هغه ښه تر کمبلې د بانډې کښيني دي او په خپل حد قانع وي د ټولني پرمختګ ته لاره خلاصوي. استعدادونه روزل کیږي او د خلکو د ابتکار قوه به کار لویږي.

څومره به ښه وي چي په مدرسو کښي د وړو کومعنوي قدرت او استعداد وسنجول شي، کوم کسان چي په یوه رشته کښي لوړ استعداد ولري په هغه لار کښي دي وروزل شي، مستعد کسان چي په هره رشته کښي د استعداد خاوندان وي او د هغه سره علاقه لري هغه کار دي ورته وسپارل شي.

واقعاً دغه روش ډیر ښه او د خلکو به گټه دي او د وړو کي بدي ډول ښه رشد کوي او د لویانو په هکله هم باید دغه ډول وشي.

## یوه ارزښت لرونکي وینا:

د یو ډنمیو خبرو په نظر کښي نیولو سره د هغو وینآو ارزښت ښه تر اڅر گندیږي چي څوارلس سوه کاله د مخه د اسلام مقتدایانو کړي ده، دوی وایي:

«خلك به تر هغو پوري د خیر او نیك مرغۍ سره مخامخ وي چي تفاوت سره ولري او هر کله چي دغه تفاوت د منځه ولاړ شي او ټول خلك سره یو ډول شي مړه به شي».

دغه وینا ډیره مؤثره او حیاتي ارزښت لري دا ځکه په هغه وخت کښي چي د اوس په څیر علم او پوهني پرمختګ نه و کړی او د ژوندیك په علم کښي تحقیقات نه وه شوي او د روح پیوندنې په اوسنې معنې په هیڅ ځای کښي وجود نه درلود د یوې ستري معما د مخ څخه پرده لیري کړه او د هغه ارزښتناکي نتیجي څرگندي شوي.

(بای)

« د ۱۷ مخ پاته »

# ملاشاه پسند..

د ده د پښتو د اشعارو کتاب «زادالراحلین» نومیږي، چي د مرحوم نور محمد بو بلزي د کندهار د یوه کتاب پلورونکي په فرمایش او خاصه پاملرنه د لاهور په مطبعه کښي په ۱۳۴۷ ق کال کښي چاپ شوی دی.

د لته مونږ د خدای بخښلي ملاشاه پسند اخوند د کلام نمونه چي د دنیا په مذمت کښي ئې ویلي دي، گرانو لوستونکو ته وړاندي کوو:

دا دنیا

بې وفـا ده بې وفـا ده دا دنیا
په وصال ئې هیڅوك نه کوي ویـا
په وصال ئې ډیر عالم دی غولیدلی
ناگهانه به له هر چـا شي جدا
حقیقت ئې د بوډۍ په شان زبون دی
په صورت ده د عروس په شان زیبا
پوچ بې مغزه بې حاصله بې دوامه
نعمتونه الذتـــــــونه د دنیا
یو وار د مخ کاندي ښکاره بیا شي پنهانه
روښنائي ئې په مثال ده د بریښنا
کي د خدای په رضا ورکي دا په ستا شي
که بخیل شي دا ده ستا په ځان بلا
که په خیر په خیرات ئې چاته ورکي
بیله شکه ستا توښه ده د عقبا
اجتماع ده د ضدینو په دنیا کښي
چـاته ښه شي چـاته بده هویدا

د خارجي منابعو څخه :

ژباړونکی محمدعلي خواجه :

# د يوه فيلسوف غوره وينا

دژوند اته د کړاو نو د بد بد و په مقابل کښې د يو بل ژوندون ته دهيلې درلود لو بل لوړ شي وجود نلري .

سړی نيکمرغی ته نه رسيږي خو هغه وخت رسيدلای شي چې پر ابديت باندې اطمينان ولري په هغه صورت کښې به احساس وکړي چې نوره يې زوال بد مرغي ورته وجود نه لري .

پاسکال پيشنهاد کوي چې دخواشينې څخه د بچ کيدلو لپاره ښائي چې دخدای (ج) په وجود اقرار وکړو او له هغه څخه الهام واخلو ، د دغه فيلسوف په عقيده

دخدای تعالی په وجود باندې زړه شاهدي ادا کوي ، نه عقل او پوهه او د ايمان کيفيت دغه دی چې پاک خدای زړه ته محسوس دی نه عقل ته .

(پاسکال) دفرانسې يو لوی فزيک دان او ښه فيلسوف دی چې په اوه لسمه پيړۍ کښې وځليد او دښو نظريو په وړاندې کولو سره يې د نابوغې ډيرې تيارې

ليرې کړې او غم وهلې بشرته يې هيله او اميد پيدا کړ .

نوموړی دژلميتوب له دورې څخه دغم او خپگان له منگلو څخه دخلاصون په هيله دايمان لمنه ونيوله ، (پاسکال) د نورود لار ښوونې لپاره يوه رښتيانې

قريحه درلوده او ډير ځلې به يې څه يوه خلکو ليدل چې د ده عقيده يې غوښتل څو کوچې به په انساني مسئلو کښې گير راغي دسلا او مشورې لپاره به ده ته راتلل ، ددې لپاره چې پخپله لارښود نه

کښې دغرور او نابوغي په بند کښېنوزي دميخوچک دوسپنې کمربند يې پخپله ملا باندې تړی او کله چې به کوم باطل فکر او نظريه په زړه کښې ورگرزيده له سمدلاسه به يې څو ضربې

کمربند ته ورکولې ترڅو چې خوږ او دردئې يو په دوه کړي ، په همدغه شان يې خپله وظيفه په يادوله .

پاسکال دمسکينانو کالي اغوستل هغه شی چې په سترگو ورته بر ښيده ونکی معلوميده مخ يې ترينه اړاوه ترڅو چې په کوم شي باندې زړه ونه تړي او په دغه ترتيب له ماديا تو څخه خلاص او

معنوي مقام ته ورسيږي .

دده هرشي په باره کې څيړنه کوله له همدغه کبله داسې آثار يې منځ ته راوړل چې تر ده وروسته دنورو لپاره الهام بخښونکي شول ، د پاسکال په

نظر انسان يو عجب موجود دی ، هغه غريزې چې دسړي په وجود کښې شته ددې نښه ده چې دې دسم فکر او معنوي انديښنو درلودونکی دی ، تجربه

سړي ته ښودنه کوي چې سړی کولای شي چې په ډيرو لوړو او سپيڅلو انديښنو پيل وکړي يادا چې په کښته او سپکو خيالاتو کښې ډوب شي .

که سړي بشپړ طبيعت او دهغه برم

دعبرت په سترگو وگوري او خپلې سترگې دهغو او کښته شيانو څخه چې دی يې احاطه کړی پټې کړي او هغه رښتيا ته چې دجاوداني ډيوې په شان دنړۍ در وښانه کولو لپاره نصب شوې وگوري

دده په نظر کې به مځکه لکه په يوه پراخه دايره کښې يو ټکی (نقطه) معلومه شي چې دهغه په شا او خوا باندې يو ستوری چورلي ، حيرانيږي چې دا ارته دايره نسبت

بلې ارتې دايرې ته تر نقطې نده لويه چې داسمان ستوري احاطه کړې دی کـه چيرې دانسان پلټونکي نظر په همدغه ځای باندې ونه دريږي او دتخيل قوه

ليرې ځايو ته ولاړه شي په نتيجه کښې هغه ځای ته رسيږي چې د نورله ادراکه څخه پاتې کيږي

طبيعت هغه دائره ده چې مرکز يې ځای دی او محيط يې هيڅ ځای ندی او په پای کښې دلوی خدای [ج] دلوړ قدرت د محسوسو لو لو په نښه ده چې زموږ تخيل به

هغه کښې ورک کيږي .

کله چې انسان له دغه ننداري څخه بيرته راوگرزيد او خپل ارزښت يې د دغه هستي په نړۍ

کښې وسنجاوه او خپل ځان يې دطبيعت په دغه ليرې ناحيه کښې سرگردانه وليد په هغه وخت کې

(۲۰مخ)

د مېښکي، ښاروتو او دهغان په هکله فيصله کولای شي.

پاسکال ورووسته داسې وايي: انسان ته توصيه کوم چې په دغه پېژندنه کښې ډېر ښه او ظريف موجودات وپلټي، هغه وخت به وويني چې يوه کوچني خزنده سره له کوچنۍ والي ډېر کوچني غړي لري، د پښو تولي ئې بندونه او رگونه لري او په رگو کښې ئې وينه چليږي سړی د دغه حيرانونکي شيانو په ليدنه هک پک پاتې کيږي.

پاسکال د مرگ په هکله داسې وايي:

هغه زمانه د ژوند تلونکې ده چې احساس به کوو قول خوندونه موږ د تېرېدونکي دي او غمونه او ناخوالې مو پای نه لري په پای کښې هغه مرگ چې موږ تهديدوي امکان لري زموږ په نظر کښې ناخوښه ښکاره شي. د دغو غم ځپونکي پديدو په مقابل کښې کهسم او ښه فکر وکړو وبه وينو چې د يوه بل ژوندون تر امېد بله لوړه آرزو نشته، سړی نېکمرغۍ ته نه رسيږي مگر هغه وخت رسېدلای شي چې په ابديت باندې اطمينان حاصل کړي په هغه صورت کښې به احساس وکړي چې نور هيڅ ډول بدمرغي ورته وجود نه لري.

پاسکال پيشنهاد کوي ددې لپاره چې د غم او خواشينۍ څخه ځانونه خلاص کړو لازمه ده چې په لوی خدای [ج] باندې عقيده ولرو او د هغه څخه الهام واخلو ده په عقيده زړه د خدای پر وجود باندې شاهدي وايي نه عقل او د ايمان کيفيت هم دادی چې لوی خدای [ج] زړه ته محسوس دی نه عقل ته.

پاسکال د زه (من) په تعريف کښې وايي: څوک چې د پنجرې شاته درېږي ترڅو چې د تېرېدونکو ننداره وکړي که زه له هغه ځايه تېر شم آيا داويلای شم چې دی زما د ننداره لپاره د پنجرې شاته ولاړ دی؟

خير داځکه چې دی هيڅ کله په خاص ډول زما په فکر کښې نه دی، که يو څوک يو سړی د هغه ښايست له کبله خوښ لري آيا په حقيقت او رښتيا ئې نو که ئې دوست لري بايد ووايو نه، داځکه چې د کوي داني (چيچک) چې

ښکلا له منځه وړي هغه کولای شي چې دی نور هغه سړی خوښ نه لري که ما د عقيدې او حافظې له مخې دوست لري آيا ما دوست لري؟ نه ـ ځکه چې زه بخپله له لاسه وزم.

نو دغه (زه) که نه په تن او نه په روح کښې دی چېرته دی؟ او ځنگه کولای شو جسم او روح پرته له دې چې د دغو صفتو لپاره چې زما د علت او شخصيت سبب نه دی دوست ولرو.

بنا پر دې خلک هيڅکله څوک دوست نه گڼي بلکه د هغه صفات دوست لري، زه کولای شم چې يو سړی بې له لاسو، پښو او سر څخه تصور کړم خو داسې نه شم کولای چې هغه بې فکر تصور کړم او دغسې يو موجود به يا بې شعوره حيوان دی.

له هم دې ځايه ثابتيږي چې فکر انساني لوی والی منځ ته راوړي، زموږ قول برم او لوی والی زموږ په انديښنه کښې دی، له هم دې ځايه بايد وړاندې لاړ شو او ښه سوچ وکړو ځکه چې د ښه خوی (اخلاق) اصل او بنسټ هم داسې دی.

پاسکال د اجتماعي اړيکيو په هکله وايي زه فقر خوښ لرم داځکه چې خدای [ج] ئې دوست لري، شته من مې هم خوښيږي ځکه چې د بې وسو او نيستمنو د لاس نيوی وسيله ده د هر چا په برخه کښې ښه وفا داري خوندي کوم، څوک چې زما سره بد کوي تاوان ورته

نه رسوم، هڅه کوم چې د هر چا لپاره دادگر او رښتين اوسم، د هغو لپاره چې پاک خدای [ج] زما سره پيوند کړی دی په ځان کښې د زړه مينه احساس کوم که څه هم يوازې يا داچې د خلکو تر منځ يم.

ښه پلو قول او کارو کښې د خپل خدای [ج] مراعات کوم ځکه چې هغه زما د قولو او کارو داوري کوي او ما قول شيان د ده په لار کښې وقف کړي دي.

د هغه زما د احساساتو ډول دی، زه هره ورځ خپل نجات ورکونکي ته چې دغسې احساس ئې راته بخښلی او زه ئې د شر او شرارتونو څخه خلاص کړی يم تسبيح او ثنا وايم.

پاسکال د مينې او ښکلا په هکله نظريې لري چې په زړه پورې دي.

دی وايي د مينې په تش يادونه خلک مين کيږي

او تر دغه هيڅ يو احساس اسان نه دی او د انسان طبيعي ميل دی، مينه تل کلي عمر نه لري او په هر وخت کښې ښکاره کيدلای شي.

(نور په ۲۲ مخ کښې)

(د ۲۱ مخ پاته)

## دیوه فیلسوف غوره وینا

شاعرانو داڅکي موږ ته ویلي دي، موږ بې له دې چې کوم شي له هغو څخه و پوښتو پخپله هغه حس کوو. د پاسکال په عقیده ښایست او ښکلا په ذړه او ځلوې

لري او یوه له ځلو څخه ئې ښځه ده، کله چې ښځه د ذوق او قریحې درلودونکي دي ښکلا بر سیره کوي او هغه د حیرت مرحلې ته رسوي.

بشر ته لازمه ده چې د ځان لپاره چوړه پیدا کړي تر څو چې نیک مرغي ته ورسیږي او په غالب ګمان سره دا چوړه د شرایطو په تساوي کښې پلټي دا ځکه چې آزادي د تساوي په شرایطو کښې په آساني سره صورت مومي.

کله چې بو سړي بې د تساوي د شرایطو یو څه څخه د وسته لري: جاه طلبي ښائي د مینې له موضوع سره ملګري دي خو په ابزه مودم کښې مینه ورباندې بری پیدا

کوي ځکه چې مینه چپاو ځاکم دي چې هیڅ ملګري نه مني او غواړي چې یوازې وي، لازمه ده چې ټول هوسونه د مینې په وړاندې په ګونډه شي او د مینې حکم او امر ته غاړه کښیږدي.

(پاې)

(د ۱٦ مخ پاته)

## د ګنډ هارلاسي صنایع

ولې څنګه چې لیدل کیږي کم شي چې د ګران هیوادو د غه مشهور صنعت ته ئې تاوان پیښ

کړي دي. هغه په مختلفو ډولو ئو د ایلامي بو ټوټو د اردول او

د هغو استعمال دي چې د یوې خوا ئې د ګنډهارۍ بو ټانو اصلي قیمت بلکل ټیټ کړی دی او د

بلې خوا ئې د دغه محلي وطني صنایع د پرمختګ او انکشاف لار تړلی ده.

(پاې)

(د ۱۵ مخ پاته)

## ناته وایم؟

بحر درته و وایم ... خو دا او په کله کله تر بو خو ند لري ...

که د میو ساقي درته و وایم ... خو څه چې ساقي یوازې او یوازې د میو په پیاله ساقي دي ...

نو څه درته و وایم او په څه نامه دې و بولم خو درته به و وایم چې څنګه وایم هغسې ئې ...

او چې څنګه ئې هغسې اوس زما ګران ئې ا...

(پاې)

ژباړونکي (خواجه):

## بې هدفه هیله

موږ وینو چې ټول مخلوقات په یوه کار باندې اخته دي، د شاتو مچې د خوشبویه ګلانو په لټه کښې دي،

الوتونکي مرغان د خپلو نغمو او خوږو آوازو سره بو ټي او غاشي ټولوي چې ځانو ته ځاله ګی جوړه کړي، ژمی هم

خپل ځاى د پسرلي وږمو ته و سپاره، په دغه جنبش کښې یو ازې زه بیکاره یم چې نه شات جوړولای شم او نه کومه ځاله ګی آبادوم.

زه د رود د غاړې خوږ شمال ته چې په شنو مرغو باندې چلیږي او دیخو او بو چینې ته چې خوږې او په ئې لکه عسل غوندې بهیږي ګورم.

اې د همیشه توب نعمتو نو او ځلیږي د هغو لپاره و ځلیږي چې د شپې و رځې په ګرزیدلو سره حرکت کوي او د خپلو ځانو څخه ګټه ورځي نیسي او آبادیږي دي.

ای د روڼو او بو د کې و یالې تاسو هم مستي و کړي زه هم د خپلو وچو شونډو او ګونجې ګونجې تندې سره د زماني او روزګار سرګرداني ګالم.

آیا تاسي کولای شي چې په خپلو وینا ؤ سره زما روح بیده کړي.

هو کې ! بې له امید څخه کار کول

د عمل شات غلبیلول دي او بې هدفه امید لکه بې روحه خوزیدونکې دي چې نشي کولای ژوندی پاتې شي.

## دیوې شاعرې پېژندګلوي:

## انیزې ماریا ګیتانا

د ایطالیې یوه ریاضي دانه او دژبې یوه متخصصه ښځه ده چې په میلان کښې

په ۱۷۱۸ کښې پیدا شویده د دې پلار د ریاضي پروفیسر و. په ۱٤ کلنۍ عمر ئې فلسفه لوستله. او په ۲۰ کلنۍ عمر په خپل کور کښې یوازې په تحصیل بوخته وه

او د پلار تر مرګه وروسته یوه باب د غه ښځه د خپل پلار پر ځاى په پوهنځي کې مقرره کړه وروسته بیا دغه ښځه په راهبانو کې شامله شوه دغه ښځه مشهور د آثار هم لري.

(۳۲مخ)

د ریډرز ډایجسټ څخه:
دفهیمې «بابې» ژباړه:

# زموږ پیریانی کور

دهغې ورځې څخه چې دغه ایکوال اووده لو بغاړی ماندېنه ددوی و نوی کور ته نقل مکان کړی دی ، هلته په وارو وارو داسې پیښنا که او حیرانو نکې واقعاتې پیښې شوی دی چې موږ هغه نه شو توضیح کولای .

په ۱۹۶۲ ع کال دجون دمیاشتې پر ۶ نیټه کله چې جمال زموږ اثاث البیت زموږ نوی کور ته چې د کالیفورنیا د ایالت په «بیورلی هل» نومې ځای کښې پروت دی ورنقل کول دغه پیښه وشوه .

ما پښین کوم وخت چې زما میرمنې (الك یوجرمن) دجریده و لیکوال اود هغه میرمن ما پښین عصریې ته دعوت کړی وه ، هغه وخت چې (الك) چای په پیاله کښې اچولی دجریده نګار دمیرمنې وویل: «هغه سړی څوك دی؟ » .

الك وویل «کوم سړی؟!

دده میرمنې وویل: هغه سړی چې اوس دستې د خونې ژاووتی او د اوبازې دحوض وخوا ته تیر شو .

الك فوراً پـه کتلو پیل وکړ اول د اوبازې حوض تـه ، وروسته د ډوډۍ خوړلو خونې تـه ولاړه د کومه ځای څخه چې هغه سړی

راوتلی و ، مګر هیڅوك ئې په سترګو نسوه .

دلیکوال میرمنې ددغه سړی دلیدلو ډینګاروکې اووېې ویل: چې دا یو قوی هیکله سړی او عمر ئې د پنځوسو کالو په حدودو کښې و . د سرویښتان ئې کم وه تور پتلون او سپین کمیس ئې اغوستی و او توره نیکټائی ئې تړلې وه .

الك دغه قیصه ډېروډېر دمیز پر سر ماته وکړه او دوا ړه ددغې واقعې دپیښېدو سره حیران پاته سو لو ، لیکن دا موضوع مو جدی ونه بلل .

دهمه حادثه دوې هفتې وروسته بدې ډول پیښه شوه:

کله چې زمـا خواښې په ژیرخانه کښې استراحت کړی و هغه وخت چې دخو به راویښه شوه خپل مخ ته ئې ژوندی سړی مشاهده کړ ، دی ددغه سړی په لیدو سره چې ددې دچپر کټ پښو ته ولاړ و ډینګاروکې اووئې ویل:

کله چې ما په چغو پیل وکړ دغه سړی ورك شو .

تردغه وروسته تقریباً هره شپه موږ دډوډۍ خوړو دخونې څخه آوازونه اوریدل او دغه آوازونه داسې اوریدل کیدل لکه چې څوك پسله دعوته چوکۍ بیرته ترمیز لاندې ایږدی ، په اول کښې موږ دا موضوع مسخره ګڼله او ویلهمو چې شاید دا به دا پیوت «سړی» وی چې اثاث البیت دوباره ځای پرځای او تنظیموی (څرنګه چې په اوله کښې د پیریان دلیدو خبر دا پیوت یعنې د جرمنې لیکوال د ښځې دخوا خپور شو نو موږ پخپل مـا بین کښې ددغه واقعاتو بانی هغه سړی باله او هغه مو د لیکوال د ښځې یعنې د ایپوت دسړی پنامه یادا وه ) په هرصورت پسله څه مودې مو دا موضوع جدی وګڼله او د حفظ ما تقدم دپاره مو دهغو دنو څخه ځانګې بری کړی چې د آشپز خانې د کلکینو سر به ئې تماس کاوه .

کله چې زما ښځې الك دفلم جوړولو دپاره یو ګوسلاویا ته ولاړه ، ما تصمیم ونیوی چې د بعضې کارو دپاره څو هفتې دلته پاته سم ، کله چې زه په کور کښې یوازې سم ډیر ناآرامه او په تشویش وم په تیره بیا دشپې له پلوه چې ددغو ناراحتیو بیان زه نسم کولای . که څه هم په اوله کښې ماخپل ځان په کور کښې یوازې نه حساوه او ډاډه وم لیکن وروسته برعلاوه ددا سې کارو چې روحاً سړی په عذاب وی نور واقعات هم ایدل کیدل .

په وارو وارو به ما د کور دژیرخانې کلکینان تړلی او قلف کړل خو سهار به دا کلکینان

(۴۳ مخ)

پهٔ ښکاره ډول خلاص ولاړ وه او همدغه رنګه د ډوډۍ د خونې واقعاتو او آوازو ادامه پيدا کړه .

د سرای دانننوتلو لو پهٔ دروازه بداسې حال کښې چې ما وتړ له او قلف مې کړه خلاصول او تړل ئې د شپې دوه واره ما اوريدله ، عجبه دا چې سهار همدغه دروازه تړلې او قلف وه .

د دغو واقعاتو په پيښيدلو سره عجيب عکس العملو نه ما ته پيښ سول د دغو آوازو د معلومولو دپاره ما د دې دانې ترانسمیټرونه«مرسلې »دانيولې ، دا دې

دانې اف ۰ ام ډوله دانړيوګانې مې ماديت واخيستلې او پهٔ هره دانړيومې يوه دانه ټيپ ريکارډر وتاړه ، پيله د ګاراج د دروازې څخه سرای ته دا خليدو

دروازې ته د رلودې ، ماهم يوه دانه مرسلهٔ د ګاراج په دروازه کښې چې سرای ته دا خلاصيد له کښيښوله . بله دانه مې سرای ته د ننوتلو په لويه

دروازه کښې او بله دانه مې د ډوډۍ خوړلو په خونه کښې پټه کښېښوده .

څرنګه چې ترتيبات نيول شوی وه زه د خوب په لوړه خونه کښې منتظر کښېنستلم ، ضرورت پيښ نه و چې ډېر انتظار وباسم ، څه وروسته پيله دې

چې کور ته د ننوتلو د دروازو څخه څه واورم د ډوډۍ خوړلو د خونې مايکروفون چې هلته پټ ايښودل شوی ؤ د چوکۍ ښورولو آوازونه د مرسلې د

لارې ما ته خبر دا کړې ، خپله مخصوصه پوليسي تو پنګچه مې راواخيستله او د ډوډۍ خوړلو خونې ته ورغلم ، برق مې

ولګاوه ، پهٔ خونه کښې هيڅوک نه وه چوکۍ په ترتيب پخپل پخوانی حال پرته دې ، بيرته بستر د خوب خونې ته ولاړم

او ټيپ ريکارډرونه مې غوږ ونيوی د ټيپ ريکارډر څخه دا سې معلومه سوه کوم وخت چې زه کښته راغلم دا آوازونه خاموشه سوه پهٔ ټيپ

کښې د سوئچ وهلو او غږ زما عصبانی قدمونو او د چوکۍ ښورولو آوازونه پسله هغه چې ما خونه پرېښوده په وضاحت ټيپ شوی وه .

پسله يوې هفتې ما يوګوسلاويا ته حرکت وکړ او په عين حال کښې مې د يو تن مخصوص پوليس سره خبرې وکړې چې

کوم وخت چې زه په خارج کښې يم زما د کور مراقبت وکړي .

د ده څخه څو واره د کلکيدو نو د تړلو او خلاصيدلو د مشاهداتو او حادثاتو اطلاع راکړه سوه او اطمينان ئې راکړ چې برعلاوه

د دغو واقعاتو کوم شی ضايع شوی نهٔ دی .

د غه رنګه پهٔ دغه اطلاعيه کښې ذکر کړی وه چې د ۲٤ ساعتو دپاره ما سرای ترخپل سخت مراقبت او څيړنې لاندې ونيوی :

د سپټمبر په ۱۸ د سهار پر ۲ بجو او ۳۰ دقيقو د سرای څراغونه نابېره ولګيدل کله چې زه کور ته نودې شوم څراغونه مړه شوه

د دغې پيښې په ليدو سره مې برقی راوغوښت چې د کور د برق لينونه او فيوزونه وګوري

که چيرې د برق په لينو او فيوز کښې کومه خرابی موجوده وي هغه هم ګرده لينونه او فيوزونه په دقيق ډول سره وکتل او هغه ئې جوړ او سالم وبلل .

د عيسوي اختر څه د مخه زه او الک دا د وپا څخه بيرته خپل هيواد ته راغلو او هره شپه به مو د ډوډۍ خوړلو د خونې څخه

آوازونه اوريدل زموږ ۲ دانو سپو د دغو آوازو په اوريدلو سره عجيب عکس العمل ښکاره کاوه کله چې به د ډوډۍ خوړلو

خونې ته داخليدل غپا ئې کوله (بابې) سپې به د ډوډۍ خوړلو په خونه کښې پر يوه معين ځای به

ځغاسته پيل کاوه او بداسې توګه به د خونې څخه دا ووت لکه چې د کوم سړي پښو ته حمله وراچوي .

د ۱۹٦٥ ع کال په پسرلی موږ د واړه په کور کښې نه اوسيدلو او په همدې وخت کښې مو د خپل رفيق څخه غوښتنه وکړه چې

کله کله زموږ د کور خبر واخلي وروسته زموږ رفيق جسو قصه وکړه چې هر څو نه چې ما دروازې قينګې تړلې او قلفولې کله چې به

بيرته دا تلم يوه : دروازه به خلاصه وه دا فکر مې وکړ چې ممکنه ده چې د دغو دروازو کلې د ې د بل سړي سره وي د دې دپاره مې د دروازو قلفونه بدل کړل .

په ۱۹٦٥ ع کال دا ګست په مياشت کښې ما او الک د کور دروازې وتړلې او د يوې مياشتې دپاره د بحر ساحل ته ولاړو

يوه ورځ د مو قرپه : ريمه د مکتوبو او پوستې اخيستلو دپاره کور ته راغلو .

«مارون چاندلر » نومې سړی چې د او بازۍ د حوض د پاکيدلو

کاډېبه غاړه ؤ زما څخه ئې پوښتنه وکړه چې داسړی چې ستاسو په غیاب کښې ستاسو په کور کښې اوسېږي څوک دی؛ ورته ومې ویل چې په کور کښې څوک نه اوسیږي مارون ددې خبرې په جواب کښې وویل: ماهم تصور کاوه مګر ډېرې شپې به ورځ مې یو قوي الجثه سړی

چې د٦ فټو په اندازه جګ ؤ تور پتلون او سپین کمیس ئې اغوستی ؤ او توره نیکټایې ئې تړلې وه د ډوډۍ په اطاق کښې ولید کوم وخت چې زه د کور دروازې ته ورنږدې شوم او غوښتل مې چې دده څخه پوښتنه وکړم

د نظره مې لکه چې تجربه شي داسې ورک شوه د سپټمبر په میاشت کښې زما لیکوال رفیق چانشرلاک زما څخه خواهش وکړ چې ددوو ورځو لپاره زما په سرای کښې واوسېږي بله ورځ ئې د ټیلفون په ذریعه ماته وویل چې ما سټاد کور څخه موټل (هوټل) ته نقل مکان وکړ او

علاوه ئې کړه چې دهغه وخت څخه چې ز ستا کورته ننوتلی یم داسې احساس مې کاوه لکه چې څوک ما تعقیبوي او تېره شپه کله چې ما د کښېناستلو په کوټه خونه کښې استراحت کاوه داسې احساس مې وکړ چې ماته ډېر نږدې سړی ولاړ دی څرنګه چې ما سترګې خلاصې

کړې د خونې په دروازه کښې مې د یو داسې سړي قیافه چې قد ئې شپږ فټه ؤ تور پتلون او سپین کمیس ئې اغوستی او توره نیکټایې ئې تړلې وه ولید او په قهر ئې ماته کتل چې داسې تهدید آمیزه احساسات ترا وسه ماته نه وه پېښ

شوي چې ددې پرې وار خطایي له لاسه ژر د خونې څخه تښتېدلی وتلای.

پس له دغو اطلاعاتو او واقعاتو ما تصمیم ونیو چې زه باید په ښکاره ډول اعتراف وکړم چې زما په کور کښې خارق العاده واقعات پېښېږي پس له هغه مې زما یو روحیات

دان رفیق ډاکټر رودریک ګوردنی چې یو د روحیاتو د علومو د تدریس غړی و څخه دیو س ای ل ای د پوهنتون ؤ راوغوښت او ده ته مې دا حیرانونکی قصې په جدي توګه په وار خطایۍ سره وکړې، ده په جواب کښې وویل چې یو

د روحیات دانانو څخه چې د طب په فاکولته کښې اوسېږي او ده ای ایس پي آر (امریکائي ټولنې د فزیکي تحقیقاتو) د موسس د کارو سره پوره آشنائي لري او علاوه ئې کړه چې دغه مؤسسه ددغو کورو په غیرقانوني واقعاتو او پېښو کښې په بلهنو کښې د لچسپی لري.

زه په ددوی سره تماس ونیسم پس له هغه مو دې ده وویل چې ډاکټر کوردنی د ای اس آر پي موسس داسې تقاضا لري چې څو تنه حساس خلک سره د وساېلو ستا کورته ولېږي آیا ته په دغه کار موافقه لرې او دغه رنګه ئې

علاوه کړه چې دغه څو تنه د جنوبي کالیفورنیاد ای اس، پي، آر په مؤسسه پورې اړه لري سربېره پردې دا هیئت ستا او الکټ څخه دا خواهش کوي کله چې ددوی د معلوماتو لپاره هلته د دغې ددې لپاره چې تاسو ددوی د مشاهداتو محل واقع نسي باید تاسې هلته ونه اوسې په هدغه

ډول یو څه عجیب او غریب خلک زما کورته راغله دغه ټوله ډله په استثنا د یو څو تنو؛ چې د قیافې درلودې او صادق خلک وه ددې ټوله بدې عقیده وه چې زما کور د پېریانو هستو ګنځی ګرځېدلی دی.

د دغه ډلې حیرانونکي او خوف ناکه پر جسته مشاهدات او مجالس چې زموږ په کور کښې اجرا کړه په لاندې ډول دي: د اکتوبر په ٢١ تاریخ ډګلس جانسن چې یو با بصیرته او بېنا سړی ؤ د یو ه تن دای اس پي آر د غړو سره مستقیماً دډوډۍ خوړلو خونې ته ولاړ او وی ویل چې هلته ما داسې

سړی ولید چې بریتونه ئې درلوده ددې سړي د موسیقۍ سره علاقه درلوده دا یو چاغ او پاڼې سړی دی چې خپل ډېر عمر ئې په سخاتېر کړی دی.

د نومبر په ٦ تاریخ دلات وان ستر ال میرمن چې یوه بله با بصیرته ښځه وه چې ډېر کلونه ئې د خپل استعداد او لیاقته څخه استفاده کړې په برلین او د جرمني په نورو ښارو کې ئې د پولیسو سره ډېر کومکونه کړېدي چې اوس ئې په لاس انجلس کښې ډېر شهرت درلود دغه ښځه زموږ د

ډوډۍ خوړلو خونې ته ننوتله او دیوه قوي او با کینې سړي د وجود ئې هلته اعلام کړ په ترس او لرزئې وویل چې دغه سړی زما سره تماس وکړ او علاوه ئې کړه چې دی زما څخه نفرت کوي او زما څخه غواړي چې د خونې ووځم

د نومبر په ١١ تاریخ یو بل سړی چې با کسټن بل نومیدی او ددغو کورونو په بلهنو کښې ئې ډېر شهرت درلود زما ټول کور ولټاوه وی ویل چې ما یو پنځوس کلنی سړی چې وضع ئې پریشانه وه په کور کښې ولید او داسې فکر ئې کاوه چې دا یو ډاکټر ؤ چې د عمر په اخره کښې د زړه د حملې له امله مړ شوی او تصمیم ئې نیولی دی چې په هدې کور کې باقي پاته شي.

د نومبر په ۲۲ نیټه ښاغلي کریشنا چې د برطانیې د روحي انجمن د معتبرو غړو د ډلې څخه گڼل کیدی د ډوډۍ خوړلو خونې ته ننوتي او داسې اظهار يې وکړ چې ما یو ځنگ‌سړی چې ۵۸ کاله عمر يې درلود ولیدی د زړه د حملې په اثر په پاریس کښې مړ شویدی.

دا ډېر حیرانونکي اطلاعات وه په هر ترتیب د دغه پیریان دا شرح‌حال د هغه ډاکتر په قسم دی چې څه موده د مخه ددې سرگذشت ما لیکلي او د دغه تالیف د مخه دي نا بیره مې شو، دغه رنگه دغه شرحې‌حال د الك د پلار د سرگذشت سره هم په بعضې موضوعاتو کښې شباهت درلود.

په عین وخت کښې موږ د سرای د سابقه مالك سره تماس ونیوی د سرای په باره کښې مو پوښتنه وکړه چې د دوی راپورونه د سرای په باره کښې قابل د اعتبار نه وه، دوی پدې سرای کښې د یونیم کال د پاره استوگنه درلوده.

د سرای د مالك ښځې وویل: پدغه سرای کښې موږ ډېر څه شی غیر عادي او یا خارق‌العاده واقعاتې په غیر ددې چې کله کله به مو بعضې عجیب آوازونه اوریدل نه دي لیدلي. یوه شپه کوم وخت چې زما مېړه د باندې تللی ؤ د شپې ۱۱ بجې وې چې ما استراحت وکړ چې د ډوډۍ خوړلو د خونې د ښو د ترېې په آواز، زه د خوبه راویښه شوم. دا آوازونه دونه روښانه وه چې زه ئې ډېره وبیرولم فوراً مې څو دقیقې ته تیلفون وکړ د هغې څخه مې تقاضا وکړه چې که زه ددې کور ته ورتلای سم او ددې سره پاتیدلای سم، پدغه وخت کښې مې د خونې دروازه په ځان پسې قلف کړه او د تیلفون په ذریعه مې ټکسي راوغوښت څه موده وروسته ټکسي راغی او زه موږ د کور ومخ ته ودریدی، زه د ټکسي د ډریور د زنگ په انتظار په خونه کښې کښېنستلم، دی رانغی بالاخره مې د خونې د کلکین څخه ورنارې کړه کله چې د جواب راکړ په زینو کښې راکښته او په ځغاسته په ټکسي کښې کښېنستم پدې ضمن کښې مې د ټکسي د ډریور څخه پوښتنه وکړه چې ولې دی د کور زنگ ونه واهه او ما ته دې اطلاع را نکړه!.

ټکسي ډریور وویل چې: ستاسې د کور د دروازې ته سړی ولاړ ؤ فکر مې وکړ چې ممکن څه به غواړي کله چې ما تا ته جواب ورکړ دغه سړی د نظره غایب شو.

ددې سرای دوهم مالك یو تجار ؤ چې عمر يې څه کم ۵۰ کاله ؤ. تجار یو کال پدې کور کښې استوگنه کړېده، ده‌ویل دي کیله چې زما مېرمن پدې سرای کښې یوازې نسوای پاته کېدای او ویله يې چې دا سرای پیریانو لري سره ددې چې ما کوښښ کاوه چې دې ته قناعت ورکم چې دا کار ناممکن دی مگر هیڅ فایده ئې نه کول څکه نو دا سرای ما خرڅ کړ.

دا ثابت‌البیت د شور د ید و د آوازو دا ولې واقعې او د ډها فیلم د پیریانو د لیدو څخه تقریباً ۲ کاله تیر شوه تر اوسه په حدودو کښې د ۳۶ حساسو خلکو، وسایطو او مخفي پولیس زموږ کور ته راغلي دي او ددوی اقلاً دغې نتیجې ته چې دا کور پیریانو لري وموافقې ته رسیدلي دي تر ټولو مهمه دا چې دا ټوله راپورونه چې د دوستانو او نورو له خوا شرحه او ارائه شویدي په صحیح ډول بیان شویدي.

پولیس، د برق د حشراتو او د مفادي حیواناتو متخصصین چې ددې کار د پلټنې د پاره موظف شوي وه چې آیا حشرات، مفادي حیوانات د مځکې لاندې د کلکین او یا د بلې لارې د کور تعمیر ته لار لري که چېرې لاره ولري امکان شته چې دوی دې د دغو بیرونکو او حیرانونکو واقعاتو بانی وي پدې برخه کښې ټول دې نتیجې ته ورسیدل چې هیڅ شی حتی موږك د کلکین او یا د بلې لارې تعمیر ته لاره نه لري، حتی پدغه منطقه کښې لکه په نورو ځایو کښې سنجاق (حیوان) هم نشته کله کله سنجاق د رختې ته خیژي او د کور د تعمیر دیوالونه په غاښو چیچې او داسې آوازونه چې د سړي د بیرې سبب‌سي تولیدوي.

دغه رنگه د طبقات‌الارض پوهانو نظریه ورکړه چې د تعمیر لاندې مځکه بیخر کنه او ثابته ده او هغه معمار چې دغه تعمیر ئې جوړ کړیدی معلومات ورکړ چې د کور تعمیر د جامدو موادو څخه جوړ شویدی که دا سوال راښتیاوی چې موږ د پیریانو په تصرف کښې یو

(نور په ۲۸ مخ کښې)

د مصطفی لطفي منفلوطي له العبرات نومي عربي کتاب څخه: د عبدالقدوس «نجیب» ترجمه:

«دریمه برخه»

# یادونه

امیر: دا کار به دې زما د ډیر ممنونیت موجب شي.

راهبې فلورنډا امیر ته د خدای په امانی لاس ورکړ او ولاړه، امیر هم د وژونکو او ژوندي کوونکو آرزوګانو په بازارکو کښې د خپل استوګنځي پر لور روان شو.

په دا سبا فلورنډا سم له وعدې سره امیر پرځو آزادو وګرزاوه او د دوی دې ګرزېدلو ترلمر لوېدو پورې دوام وکړ.

ځکه چې په د راهبې فلورنډا او عربي ځلمي د یو ځای او څکر وهلو ته په حیرت کتل او په دل ډول تبصرې به یې کولې:

بوه به ویل ته به خوږ کښې ویل چې دا څوانځی د دیني خدمت په لړ کښې د غه عربي ځلمي خپل پاك دین ته راوبولي.

مګر داسې نه وه چې دوی یې ګمان کاوه؛ بلکه له عاطفې او مهربانۍ څخه یې د امیر د اسې د محبت اور په ډېر زړه کښې بل

شوی و چې بیله لیدنې او دیدو-واديده څخه به بل شی ته مړ کېدی ولې چې عاطفه بخپله محبت دی صرف د جامې د بدلون قدر توپیر لري.

ددوی دواړو په منځ کښې د عشق او محبت نورو د قول مراتب تکمیل شوی وه خو فقط یو جرأت یې غوښتي چې دغو

پاکې هیندارې سره وهلوی او هغه ورځ رانژدې شوه چې د لویې ماڼۍ (الحمراء) د کتلو لپاره سره یو ځای

شي او د لیدلو او ګرځیدلو پروګرام یې سرته ورسیږی.

خو به هرحال امیر د الحمرا د ښکلې ماڼۍ په منځ کښې په داسې حال کښې چې د ایکونو د ډېر مجد و عظمت منظرې

یې د خیال په عالم کښې تر سترګو دورې ایسته کېدلې و وریدې او دغې شاهکارونه حیرت یووړه، تا به ویل چې

غر دی چې سر یې تر آسمانه پورې رسیدلی دی یا د تکو سرو مرغلرو کوټه ده چې بلوشي یې هر پلو ته ټیټ د برك کیږي.

امیر چې خوشګامه ور واخیستل وي لیدل چې په پراخو میدانو کښې سپینې قبې داسې ځلیږې چې تا به ویل

له ستورو سره د روښنایي مسابقې کوي او داسې ښکه برجونه ولاړدي چې بری بروني له ډیر چوېدالي څخه لاس

چوېږي، امیر به د عبرت او حسرت نظر وهري ګوښې ته اچاوه او له ځانه سره به یې دا بیتونه ویل:

وقفت بالحمراء مستعبرا
معتبرا انسدب اشتاتا

فقلت یا حمراء هل رجعة
قالت وهل یرجع من ماتا
فلم ازل ابکی علی رسمها
هیهات یغنی الدمع هیهاتا
کأنما آثار من قد مضوا
نوائب تنعی بن امواتا

ترجمه: «د الحمرا په دروازه کښې د عبرت اخیستونکی په ډول ودریدم له هرشي څخه می عبرت اخیستی او هرشي ته می کوډ بلوا هه، ورته ومی ویل چې ای الحمرا! د تیر بریا عادت به کله وشي.

راته وې ویل: آیا هغه د مرګ پرلار تللي بیاهم را ګرځي؟

په دې وخت کښې زما او ښکې د ارمان او حسرت په نغمو سر شوې په دې ښتیا چې دمړو میړونو لیدنه

دهغې ځپاکې بوډې ښځې په شان ده چې په پلو ځوانیمرګو تیرونو پسې ژاړي د امیر د سپکه وتلي

قدمونه ورو ورو داخلي حرم ته نژدې شوه.

د حرم غولي په مرمري تکو سپینو تیږو فرش شوی او تر یو ښکلو ځکو ستونو احاطه کړی و د چارچاپېر د ښکلو ماڼیو دوړو قوبو به یې د لمر له روښنایۍ

سره ددې ډانګو شنډلو مسابقې
کولو ددې منظرې په ليدلو سره
ئې په زړه کښې دازدراز اندېښنې
پيدا شوې او له ځانه سره به ئې
کړاد کړاو داويل آه دا خو زما

دا ايکونو د اوسيدلو ځايونه دي
په دې حرام سراى کښې به زموږ
دکهول د ښځو څه شو زما شوږ ؤ
په دې وخت کښې ئې زړه له ګرومه
څخه داسې تنګ شو چې تا به

ويل اوس به دچوى ديو ې ټقې
پناګاه به آرزو کښې شو چې
هلته به بيغمى سره خپل ټک زړه
تش کړي مګر له هغې ښکلې ملګرې
څخه چې دده رهبرې ئې کوله

وشرميدي اود او ښکو ډکې
سترګې ئې په ټپه د دېوال د نقشو نو
دننداړې په پلمه ددې له خوا
څخه واړولې ناڅاپه ئې سترګې
بوې کرښې چې د دروازې پر سر

په پښتو قلم ليکل شوې وه جلب
کړې او په ويلو سره ئې سوى
کړې له خولې ووتله له بيهوښې
څخه د سر بر څيړې ومښتې بو ګړې
وروسته چې ئې سترګې خلاصې کړې

سرئې د فلورنډا پر زنګانه باندې
وليدې چې دده و مخ ته ئې هک ـ
پک کتله او له ځانه سره ئې
ويله زه پرون لا بوه شوم چې بوشې
له ما څخه پټوې اوس دا ته تا پته

شوه چې ته د بنی احمر مربی نه بلکه
يو ددوى له اميرانو څخه ئې
پرون ته ددې ځاى مالک مګر
اوس د يو خوار سياح په حيث سره
ورته ګورې او د حسرت تو دې
اوښکې تويوې تويوه ئې ولې چې د
هر غفلت نتيجه دغه ده او د هر عيش

لوښ اساس پر محو و ميت او
نامرادى بنا دى .

اى د بنی احمر بد نصيبه !!!

اى د برګشت بکسى !!! او د نو امير
خپل اسرار نشو اى پټولاى
د اندلس د وتلو له وږمې څخه ئې

بيا تر دغه دمه بوى چې دى پکښې
واقع ؤ څو لى د زمانې د ګردش
قصى په وضاحت سره بيان کړې
له ډېره غمه څخه په ئې رنګ تور
اوښين شو او به نيولى ډغ به ئې

و خپلې ښکلې ملګرې ته داسې
ويل: اى زما ښکلې فلورنډا د
زمانې ګالۍ زحمتونه او ستونزې
هومره ترخې او وژونکې نه دى
لکه د راتلونکې زمانې ديدنى .

فلورنډا په تعجب سره پوښتنه
ځنې وکړه هغه کومې ديدنى دى
چې تر تيرى شوو ستونزو ترخې
وژونکې او ډاروونکې دى .

امير بو سوړ اسويلى وکيښ
او ئې وويل: زه د زمانې دغو لو
سختيو د تحمل توان لرم مګر
ستا د بيلوالى توان دا بو دى
نشته .

فلورنډا: ته زما سره څونګه
مينه لرې ؟

امير: هو هغه مينه چې مړاوى
ګل ئې د شبنم له ځڅا څخکى
سره لرى .

فلورنډا : له بوې مسيحى
بيغلې سره چې ستا په دين نه وى
ستا د محبت امکان نشته .

امير:ـ هو څکه چې په زړه
کښې د محبت لار د دين له لارې
څخه بيلږده .

فلورنډا: آيا استادز د محبت اعلان
به له ملیو مینه کومې غايې وى ؟؟

امير ـ آيا مينه لو غايه ته ده او د ځان
په قربانۍ سره نه ارزى ؟؟

مينه سعادت دى د سعادت د حدودو

---

(د ۲۶ مخ پاته)

## زموږ پيريانې...

زو په خپله پيريانان چيرې دي ما اوله
ساعتونه وخت پر دغه معضله باندې
مصرف کړيدې چې دد غه د اقماتو
دا بطه و اصلی باني ته پيدا کړد چې آيا
باني ددغه واقعاتو د سراى په تعميرانه

لري او يا په هغو قاميلو چې زموږ سره
قاميای اشتراك لرى اده پيدا کوى او يا
د کوډيه خاوندانو اده لرى پر سيره
پر دغه ټولو جدى پلټنو مو هيڅ نتيجې
ته نه يو رسيدلی .

د تجارت پيشه ډا کثر قرايني چې په
تجارت کښې د اقلاس ضرومضامخسو هم
موهومات معلومينږي تر کمه ځايه چې
مو په معلومات حاصل کړيدي هيڅ يو
ددغه د کرسوی خلکو څخه په دغه

سراى او ته په دغه محل اده دلو ده .
پيريان سړى او يا هرشي چې وى موږ د هغه
څخه نه بيريږو او خپل کوټه پرېږدو .

بيا هم څو ورځې د مخه په داسې حال
کښې چې ما ټولې دروازې په احتياط سره
وتړلې او قلف مې کړې د بيديدو لو

آماده کې مې وه نيوله چې آرام خوب وکړم
کله چې زما سترګې پټې سوې الك زه
دڅوړولم او دا ته وې ويل: څو ډونيسه
زه هم د ځايه راو پا څيدم چې څو ږمې

وڼيوى وامې وديده چې دڅوړګه خوړلو
د خونې څوکې بيا په حرکت راغلې دى .
(پاى)

بهمعلومو لوسره انسان کولای شی چی دمطلب ته نږدې شی .

فلورنډا په دې وخت کښې پهخوله وه ددوی دنورو سوالوجواب ترسبا پورې د ځنډیدی او د استراحت کولوله پاره بیلو بیلو خونوته ولاړل بهداسبا دامر دلومړی بوبلو شودخپربدو پرمهال دا دوهمین بیا به موعوده ځای کښې سره یوځای شول او دمفاهمې ومذاکری داستان ئې خپور کړ .

فلورنډا خپل لاس دامیر بهلاس کښې ورکړ او وې ویل تهءهم پرما گران ئې ! اوزما هم له تا سره بې مقصده محبت دی کهځهءهم دین زما وستا بدنونهسره بیل کړی دی محبت اومینی موږدوه سره یوځای کړی او ستی بوه قوه ئې گرزولی دی فقط دائې وویل اوذن هم رخصت شوه .

مقصدداد ی چی سرله دغی ورځی څخه ددوا ړوشپی ورځی خوږې تیریدی بهخپل ځړه به دغړ ناطی به شنو ځنکو کښې گرځیدل اوهرځای چی بهئې دخپلو نغمه سرایو او دراز و نیاز له پاره مساعد گاڼه هلته به کښینستل خوکاشکی دزمانې ودې سترگی ړندې وای اوبردوی ئې دسعادت داځو لنډساعتونه چی داوښکو بهولو او کړاوو گاللو بهبدل کی وربخښل شوی و موږ تهوای ترځه کړی . بوه ورځ دادوه ښایسته مرغان او دجنتی مینان دعین الدمع دبوې کوڅی ولی پرشنه غاړه ناست وه چی ناڅاپه (الدون رودریکث) دغړناطې دحاکم زوی ددوی لهاړخهسره تیر شو او په ځیر ځیر ئې ورته وکتل ـ دې ملکث فلورنډا څو عمر دمخه چیری لیدلی او خوښه کړی وه نوئې بسله ډیرو مقدمو څخه لهدې ځخه دازدواج غوښتنه کړی ؤ اوددې ئې به جواب کښې ویلی وه چی زه دخپل پلار دقاتل دزوی سره واده نهکوم دې ترځه جواب دهغه متکبرمدمغ دماغ ودسوی اودموقع به تلاش کښې ؤ څوداؤ چی دائې لهبوه عربی ځلمی سره ناستهولیدله او بهخیال کښې ورو ګرځیده چی فلورنډا لابخوا زهه ددې عربی ځلمی بهمینه کښې بند کړی ؤ نو بهدا بله ورځ به قصدد هغې قصرته ولاړی غوښته ئې چې خپل داگمان ځرگند کړی مگر له مقابل طرفه څخه دصحبت اجازه ورنکړه شوه بهدې سره د حاکم دزوی غضب لا بوبه دوه شو او به ډیر قهر سره

لهقصره ووت اوولاړ دهوسایی او عشرت خوږی ورځی دځولنډو شیبو بهشان دزمانې بهلاینقطعو ځپو کښې ډوبې نامعلومې خواتهخبری شوی څو ورځی پس امیر سعید بن یوسف بن عبدالله دبنی احمردقبرسکهلمسی چی پلرونهئې ددې ملکث پرونې پاچهان وه به ډیرذلت سره دمحکمې بهمخ کښې بهدې تورو دروړل شو چی بوه مسیحی پیغله ئې لهخپلهدینه څخه بشیمانه کړې او گرزولې ده داتورد محکمې بهنظر لهډیرو جرایمو څخهؤ امیرد محکمې بهمخ کښې دمجرمینو بهموقف کښې ودرول شو اوددعیس ئې دجرم دوسیه ولوستله او بیا ئې لهده څخه پوښتنه وکړه امیر لهدې ناڅاپی تورده څخه انکار وکړ خوفایده ئې ورته ونهکړه دفیصلی بهآخر کښې د امیر دخلاصون لپاره فقط یوه لاره ؤ اوقاکل شوه او هغه داچی امیر به لهخپله دینه څخه اوړی او دپیغلی دین یعنی مسیحیت بهقبلوی ددې خبر بهاوریدو سره دامیر وربښتان شخ ودریده او لهغضبه څخه ئې داسی چیغه پورته کړه چی داتعکاس سلسله ئې دمحکمې دعمارت ترآخره پورې ورسیده اووې وبل ستاسې بهکتابو کښې کوم کتاب او ستاسې بهپیغمبرانو کښې کوم پیغمبر ویلی دی چی دهغو کسانو وینې بهوی چی ستاسې بهدین نهوی نه یو هیږم تاسې دمځکی له کومی برخې او د آسمان له کومه کولکه څخه دالویدلې یاست ؟ چی بهخلکو په زور او اکراهسره خپل عقایدمنی هغه قولونه چی تاسې دخپل داتنګث بهوخت کښې ددین دآزادې به باره کښې لهخلکو سره کړیوه څه شوه آیا ستاسې بهنیز دوعدو ایفا بهدغهډول سره ده ؟ .

هو بهرشتیاحق لری تن هغسې چی غواړی وئی کړی ځکهچی تن ددې وطن دروازهستاسې دخواهشاتو پرمخ خلاصهده او دحکمرانی داقتدارلاس موبکښې اوږ ددې تن بههرومرو هغه کیږی چی تاسې ئې غواړی له هغو نابوهانو څخهخدای هیڅکله دتمدی ناوړین نه لیری کوی چی دجابرینو بهتشوقولوغولیږی اوس چی تاسې واکمن اوموږ بې واکه یو نو دامسلمه ده چی حق او حجت ستاسې قوی او پرجانب دې هره آرزو چی لری ترسره ئې کړی . امیر بهلاوخپلو دې خبرو ته طوالت ورکاوه چی دئیس پې خبره بریکړه او امر ئې وکړ چی ژر ئې دمرگ میدان ته کش کړی .

(نور به ۳۰ مخ کښې)

دخارجي منابعو څخه: دعبدالصمد نصرخواه ژباړه:

# عصبيتوب

ټوله ساکښان دژوند سره مینه لري خو کوم شیان چې دژوند اساس برابروي هغه ته هڅه کوي او کوم شیان چې ژوند په خطر کښې اچوي دهغو څخه ځانونه ژغوري ساکښان که کوچني وي او که لوی خو هغوی ټوله یو نوع دفاعي قدرت لري او دخپل مجهزوالي له امله دځینو خطرونو څخه ځانونه ساتلای شي او حتی ځینې دحملې توان هم لري ځینې ساکښان دغاښو او پنجو په وسیله او ځینې بیا دزهرلرونکو نیښو په واسطه مقابله کولای شي ځینې ساکښان بیا د تیښتې څخه کار اخلي او ځانونه دناوړو پیښو څخه ساتي .

په دغه مورد کښې انسان هم دخپل ژوند دحقوقو دفاع او دخپلو ګټو دساتلو لپاره هڅه کوي دزیان او آفتو څخه ځانونه ساتي ، خو کله چې ځان، مال یا ناموس په خطر کښې ووېني نو طبیعي حالت ئې اوړي دقهر او غضب نښې پکښې ښکاره شي .

دانسان لومړني دفاعي مرحله دغضب او خشم څخه شروع کیږي او په دغه وخت کې دده عقلي، فکري او جسمي انرژي په کار لویږي او هڅه کوي چې متوجه شوي خطر له منځه یوسي او یا دهغه دمقابلې او مبارزې لپاره چمتووالی دپورتني حالت څخه ښکاري چې غضب دانسان ددفاعي وضعیت سره مستقیمه رابطه لري او ویلای شو چې دغضب دپیدا کیدو عامل دانسان په پیدا ښت پورې تړلی دی .

دهمدې اصل له مخې دانسان غضب یو سرسري کار نه دی بلکه دهغه وجود دانسان دژوند سره مل دی .

که څه هم غضب او قهر بد بلل شوي دي خو په ځینو مواردو کښې دقهر او غضب نه ښودل هم بد او غیر منطقي دي .

په هر حال هغه څوک چې بې مورده پرځا په قهر او غضب کیږي وخت، زمان او موضوع په نظر کښې نه نیسي ګواکې په حقیقت کښې دمزاج اعتدال نه لري او دفکر کولو کنترول ئې له لاسه وتلی دی او دعقل دستګاه ئې خرابه ده او نه شي کولای چې دغضب په وخت کښې د عواطفي احساساتو څخه کار واخلي د داډول وګړو عقل دیو ډول مشکلاتو سره مخامخ دی او په دغه وخت کښې هیڅکله دپوه استدلال تصمیم نه شي نیولای ځکه چې داډول غضب انساني عواطف او منطق له منځه وړي نو ځکه غضب بد بلل شوی او په اسلام کښې هغه په شیطاني عمل تعبیر شوی، او داسلام دین دقهر او غضب څخه په پرهیز کولو امر کوي او داسې دپاک خدای [ج] په وړاندې هغه څوک ښه دي چې دغضب په وخت کښې له حقیقت څخه وانه وړي او نه دغضب په حالت کښې په تعدي او ظلم لاس پورې کړي .

بې مورده غضب او قهر ډیر بد دی دانسان دفکر او عقل څرخ ودرانوي او دهر چا چې بې مورده غضب او قهر ډیر وي په همغه اندازه بې بدبختۍ او پښیماني ډیره وي که چیرې دتند خویه او عصباني سړي پښیماني نه وي نو په حقیقت کښې دا بیا دهغه یو قسم لیونتوب دی.

بې مورده غضب او قهر دپوهو انسانانو په وړاندې ډیر بد ښکاري او لوبه ګناه بلل کیږي او سړی بیرته پر دغه کله کله انسان دلویو آفتونو حتی دجنایت او قتل سره هم مخامخ کوي .

امام جعفر صادق [رح] وائي : غضب دټولو بدو او ناوړو پیښو کلي ده .

موږ باید کوښښ وکړو چې په داډول ناوړه ناروغۍ اخته نه شو ځکه داخته کیدو په صورت کښې به ډیرو سختیو سره مخامخ یو .

................................................................

(د۲۹مخ پاته)

## یادونه

هغه میدان ته چې تر ده دمخه اسپانیه مسلمانان پکښې حلال شوي او یا سوځول شوي دي ـ ډیر خلک که تر اوسه په کښې دامیر داعدام ننداره ته راووتل ډیره سختي جلاد لاخپله په وینو ککړه توره دامیر پر ناڅینه غاړه وه ایښې چې دننداره چیانو دصفو له منځه څخه یوه سوی کربېړه پورته شوه او یو سړی ګینډ په ډول سره چې په سروو وینو ککړ او په سپېرو خاورو کښې ولړی پدی ئې په غرناطه کښې دبني احمر دهډیری له څنګه سره یو مجلل قبر چې شنه د رخام ډېره پرایښول شوی ده او څو دالندې خبری پرلیکل شوي دي لیدل کیږي د ادبني احمر د آخرني قبر دی .

دده دوفادارۍ ملګري له خوا غلو ډنیادفیلیپ

(د ۱ مخ پاتې)

# د مترقي ژوند او حقيقي ...

سره بېل دي نو دغه رنګه د هر هېواد پرمختګ، ذهني انکشاف، مادي او معنوي تحول هم بېل طرز او شرايط ايجابوي او د نړۍ بېل بېل ملتونه کولای شي چه د خاصو شرايطو او ايجاباتو لاندې پرمخ ولاړ شي او ځانونه حقيقي نيکمرغۍ ته ورسوي.

زموږ په هېواد کې د پېړيو پېړيو راهيسې دا ترتيب راغلی دی چه زموږ خلک د اسلامي معتقداتو، مليت او ملي ايډيالوژۍ په چوکاټ کې ارتقائي تغير او مثبت تحول په آسانۍ سره مني او د دغې لارې څخه پرمخ تلای شي.

نن د نيکه مرغه زموږ هېواد د مثبت تحول او عصري ژوند په درشل کښې دی، د يوې خوا مو پوهنه او روزنه په خلکو کې تعميم او پراختيا مومي او د بلې خوا مو په بېلو بېلو برخو کې د ځوانانو د کار او زحمت ايستلو په برکت او د دولت په پاملرنه او کوشش د ژوند په بېلو بېلو اړخونو کې نوې پروژې او اصلاحي پلانونه يو په بل پسې عمل کېږي او خلک موهم د دغو انکشافاتو هر کلی کوي او د خپل هېواد په ملي او اجتماعي چارو کې د ګډون او برخې اخستلو سره مو د خلکو علاقه زياتېږي.

افراط او تفريط هغه لارې چارې او نامطلوب حرکت دی چه زموږ د ملي پرمختګ د لارې لوی خنډ ګرزي او نه پرېږدي چه زموږ ټولنه او هېواد سالم انکشاف وکړي او د مثبت تحول څخه ګټه واخلي او ټول خلک مو د عصري ژوند او د هغه د ښېګڼو څخه برخه ولري.

دغه رنګه اجتماعي فسادونه، ناوړه خويونه، او د شخصي ګټې خيالات موږ په خپل اوسني ارتقائي توقف او ملي حرکت کې پرمختګ ته نه پرېږدي او هېواد مو د لوړتيا او نيکمرغۍ څخه راګرزوي نو بايد موږ ټول د دغو غلطو فکرونو او ناوړو کارونو څخه ځانونه په ټينګه ګوښه کړو او پر هغسې سمه لار ولاړ شو چه د هېواد پرمختګ ته مو لازمه او ګټوره ده.

راشئ چه نن خپلو ځانونو ته يو څه تکان ورکړو درځئ چه د خپل اسلامي دين او افغاني کلتور د اساساتو سره سم د خپلو خلکو اجتماعي او ملي ژوند تنظيم او نوی رونق ورکړو او خوښ به اوسو چه د دې عصر خطرناکه آفتونه لکه فقر، رنځ، ناپوهي، بې سوادي، يو پر بل ظلم کول او داسې نور زموږ ملي نيکمرغي او ولسي هوساينه رامختله او نيمه خوا کړي بلکه بايد په ګډه د دغو ناوړتياوو پر ضد په ملي مجادلو لاس پورې کړو او خپل هېواد د پرمختګ پړاو ته ورسوو او خپل حقيقي نيکمرغي تر لاسه کړو.

(غلام محی الدين ايوبي)



پدې عکس کې د کندهار د عمراني فعاليت بله کې د ظاهرشاهي واټ په لومړۍ برخه کې
دېاردوالي عصري مغازې ليدل کيږي